## د دريم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليكونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱−د لوست موضوع | مقياس (اندازه) | |
| ۲−دزده كړې (پوهنيزې، مهارتې او ذهنيتې) موخې. | له زده كوونكو څخه هيله كيږي چې د لوست په پاى كې لاندې موخې تر لاسه كړي.<br>−عمومي موخې:<br>−له مقياس سره پوره بلدتيا پيدا كړي.<br>ځانګړې موخې:<br>−د نقشې له مقياس سره به بلدشي.<br>−د مقياس له ډولونو سره به بلدشي.<br>−د مقياس د ډولونو نومونه به واخلي. | |
| ۳−د تدريس ميتود | توضيحي او ډله ييز كار، مباحثه، پوښتنه او ځواب | |
| ۴−د تدريس اړين توكي | كتاب، تخته، تباشير، د ښوونكي لارښود كتاب، په لوست پورې اړوند تصويرونه د امكان په صورت كې جغرافيايي فلمونه، تلويزيوني ويديويي د كمپيوتر، سي ډي ګانې او انترنت | |
| ۵−د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي لنډ ځوابه لنډې پوښتنې، په ټولګي كې د ننه فعاليت ارزونه او عملي كار | |
| ۶−په ټولګي كې زده كړه ېز او د تدريس لومړني فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ د ټولګي تنظيمول، حاضرۍ اخيستل،<br>له ټولګي بهر فعاليتونه (كورنۍ كار)، د تېر لوست ارزونه او د نوي لوست او تير لوست ترمنځ اړيكه را منځ ته كول.<br><br>هڅونكي پوښتنه:<br>د نقشې د مقياس په هكله معلومات لرئ؟ | وخت په دقيقو<br><br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې باندې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–دمقیاس په اړوند پوښتنې وکړئ، پر تخته د لوست مهم او عمده ټکي ولیکئ<br>–د نقشې له مخې مقیاس، لفظي مقیاس اوګرافي مقیاس بیان کړئ.<br>–د لفظي او ګرافي مقیاس په هکله پوښتنې وکړئ.<br>–ز ده کوونکي په ګروپونو وویشئ په ټولګي کې د ننه د دوی فعالیت جوت کړئ.<br>–پوښتنې ځوابکړئ.<br>–د زده کوونکو پوښتنې حل او د لوست ارزونه وکړئ.<br>–له ټولګی نه بهر فعالیت شرح کړئ. | –د نوي لوست سر لیک ته متوجه کیږي.<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د نقشې په هکله نظر څرګند وي<br>–د لوست مهم ټکي په کتابچو کې لیکي<br>نقشې ته پام کوي او د محترم ښوونکي توضیحات په غور اوري<br>مهم ټکي په نښه کوي او خپلې پوښتنې کوي.<br>پوښتنو ته ځواب وایي.<br>د خپلو پوښتنو ځوابونه په کتابچو کې لیکي<br>له ټولګي څخه بهر فعالیت اجرا کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

**۱–د نقشې په کسري مقیاس کې $\frac{۱}{۱۵۰۰}$ یو سانتي متر، په څمکه کې د (۱۵) متره واټن معنا لري.**

**۲– په دغه مقیاس (۱:۲۰۵۰۰۰۰) د نقشې یو سانتي متر په ځمکه کې ۲.۰۵ کیلو مترو اندازه ښیي.**

**۳–د نقشې په کسري مقیاس $\frac{۱}{۲۵۰۰۰۰۰۰}$ یو سانتي متر، په ځمکه کې ۲۵۰ کیلو متره واټن ښیي.**

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**په کارتو ګرافي نقشو کې مقیاس یو اصلي عنصر یا جز دی.**

**په نقشه کې د مقیاس شتون اړین دی، ځکه د فاصلې (واټن) ټاکل، د کرنیزې ځمکې د مساحت معلومول، د ځنګلونو مساحت د اداري واحدونو او د هیواد د پولو ټاکل او اندازه کول. سیاسي نقشې هم د مقیاس په واسط محاسبه او ارزول کیږي.**

**د سیندونو، دریابونو اوږدوالي، د اوبلنو سیمو، د بحیرو مساحت، جهیلونو او د بحیرو د پولو اوږدوالي ټول د مقیاس په واسطه اندازه او ارزول کیږي. په ځانګړي ډول په پوځي عملیاتو کې، د الوتکو الوتنه، د سمندري کرښو اوږدوالی د مقیاس په واسطه معلوم او ټاکل کیږي.**

# د څلورم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | په نقشه کې د رنګ کارول | |
| ۲–د ز ده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهينتې) موخې. | له زده کوونکو هیله کیږې چې د لوست په پای کې لاندې هدفونه تر لاسه کړي:<br>عمومي موخې:<br>زده کوونکي به په نقشه کې د رنګونو له کارولو سره بشپړه بلدتیا پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>ز ده کوونکي به په نقشو کې د مختلفو رنګونو په اهمیت وپوهیږي.<br>زده کوونکي به په نقشه کې د رنګ په کارولو پوه شي او نورروته به معلومات ورکړی شي.<br>زده کوونکي به هغه مهم رنګونه وپیژني چې په نقشه کې ځانګړی مفهوم لري او له هغو سره علاقه پیدا کړي. | |
| ۳–د تدریس میتودونه | توضیحي او ډله ییز کار، مباحثه، پوښتنه او ځواب | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، دړه، تباشیر، د ښوونکي لارښود، په لوست پورې اړوند تصویرونه او د امکان په صورت کې جغرافیاوي فلمونه، تلویزیوني، ویدیویي، او کمپیوټري سي ډي ګانې اوانترنت | |
| ۵–د ارزونې لارې | په وینا، کتبي ډول، د پوښتنو لنډ ځواب، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، او عملي کار | |
| ٦– په ټولګي کې د تدریس لومړني فعالیتونه | سلام روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ څارنه، له ټولګي نه بهر فعالیت کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره یې د اړیکې ټینګول هڅوونکي پوښتنه.<br>آیا په نقشه کې د رنګو د استعمال په هکله معلومات لري؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –ښوونکی پر تختې د نوي لوست سرلیک لیکي.<br>–ښوونکی دي په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–ښوونکی دي په نقشه کې د رنګ د استعمال په باره کې معلومات ورکړئ.<br>–ښوونکی دي پر تختې باندې د لوست مهمې برخې ولیکئ.<br>–ښوونکی دي په نقشه کې د رنګونو استعمال توضیح کړئ.<br>–دي په نقشه کې د رنګونو او د هغو د استعمال په باره کې بحث وکړئ.<br>–ښوونکی دې ز ده کوونکي په ډلووویشئ او د هري ډلې فعالیت وټاکئ.<br>–ښوونکی د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ.<br>–ښوونکی د ارزونې په موخه پوښتنې وکړئ.<br>–ښوونکی له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –زده کوونکي د نوي لوست سر لیک ته ګوري.<br>–زده کوونکي نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–زده کوونکي په نقشه کې د رنګ د استعمال په باره کې نظر څرګندوي.<br>–زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او غور پرې کوي.<br>–زده کوونکي د لوست غوره ټکي یاد داشت کوي.<br>–زده کوونکي په نقشه کې د استعمال شوي رنګ په باب له محترم ښوونکي سره یوځای بحث کوي.<br>–زده کوونکي په ټولګي کې په ډله ییز فعالیت کې رغنده برخه اخلي.<br>–زده کوونکي د ستونزو ځواب په کتابچو کې لیکي<br>–زده کوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–زده کوونکي له ټولګي څخه بهر فعالیت اجرا کوی | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

**۱–په نقشو کې دوه ډوله شمال لوری لیدل کیږي، جغرافیایي شمال او مقناطیسي شمال.**

**۲–حقیقي شمال له جغرافیایي شمال څخه عبارت دي چې د TN په توري ښودل کیږي.**

**۳–مقناطیسي شمال: د مقناطیسي شمال قطبي لوری راښیي چې د هدسن د خلیج په شمال کې موقعیت لري.**

**۴–لوړ ځایونه په نقشه کې په جګړي رنګ ښودل کیږي چې د غره له لمنې څخه لوړوالي په کم جګړي رنګ پیل کیږي، په منځني لوړ والي کې ملایم جګړي او له ۵۰۰۰ څخه تر ۸۰۰۰ ارتفاعاتو پورې تیز جګړي رنګ کارول کیږي او په لوړوغرنیو ځایونوکې که یخچال شتون ولري هغه په سپین رنګ ښیي.**

**۵–په نقشه کې ابي رنګ د سمندرونو، جهیلونو، خلیجونو، سمندرګیو او سیندونو له پاره کارول کیږي.**

**۶–په نقشه کې دښتې په زیړ رنګ ښودل کیږي.**

**۹-د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

یو ډول مشخص رنګونه د جغرافیې په نقشو کې کارول کیږي چې هر رنګ ځانګړئ مفهوم لري.د جغرافیې په نقشو کې هغه رنګونه چې کارول کیږی، له تور، شین، زیړ، ابی، سور او جګري رنګونو څخه عبارت دي، خو ځینې نور رنګونه هم کارول کیږي، چې له اقتصادي، سیاسي، بشري نقشو او له ځمکو څخه د ګټې اخیستنې په څرنګوالي کې له هغو څخه کار اخیستل کیږي، په جغرافیایي نقشوکې یو شمیر ځانګړي رنګونه استعمالیږي چې هر رنګ د زده کوونکو په ذهن کې ځانګړی مفهوم رامنځته کوي.

هغه مهم رنګونه چې په جغرافیایې نقشو کې کار ول کیږي په دې ډول دي.

-تور رنګ: د نقشې د چوکات ښودلو او دښارونو او نورو ځایونو د مختلفو نومونوله پاره کارول کیږي.

-شین رنګ: د سمسورو ځمکو او ځنګلي سیمو د ښود لوله پاره استعمالیږي.

-زیړرنګ: دبیا باني وچو او شګلنو سیمو د ښودلو له پاره دي.

-ابي رنګ: د سمندرونو، جهیلونو، خلیجونو، وړو سیندونو اوسیندونود ښودولو لپاره کارول کیږي.

-سور رنګ: د مواصلاتي کرښو، لویو لارو، اداري او سیاسي مرکزونو له پاره ترې کار اخیستل کیږي.

-ځیګري رنګ: د غرونو د لړۍ شتون ښیي.

خو ځینې نور رنګونه هم کارول کیږی چې په اقتصادي، سیاسي، بشري نقشو او د ځمکو په څرنګوالي کې ترې کار اخلي.

# د پنځم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د نقشو رسمول | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د دې لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–زده کوونکي بهد نقشېله ارتسامسره بشپړه بلدتیا پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–ز ده کوونکي باید پوه شي چې هر ه نقشه د یوه ټاکلي ارتسام له مخي تهیه او برابریږي.<br>– زده کوونکي به پوه شي چې د نقشو رسمول بیل ډولونه لري چې د سیمې د اړتیا له مخې ترې کار اخیستل کیږي<br>– زده کوونکي به د نقشو رسمول مرکانتور او مشخصات وپیژني.<br>– زده کوونکي به د مخروطي ارتسام او دکارولو له ځای سره بلدشي.<br>– زده کوونکي به په مستوي کې مولواید، ایکرت او سینوسایدل رسم کړاي شي. | |
| ۳–د تدریس میتودونه | – په ټولګي اولابراتوارونوکې عملي لاره او د تطبیق کار،<br>– ډله ییزکار، د ترسیم او ارتسام د لارې په باره کې توضیح | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | په نوري مرکز شفافه مجسمه کره، هغه شفافه مقوا چې مجسمه احاطه کوي د لابراتوار تیاره خونه چې نور او د وړانګو عمل د مجسمې کرې له مرکز څخه نشر کړي. | |
| ۵–د ارزونې لار | پوښتنې او ځوابونه، عملي کار، د ښوونکي یادداشتونه | |
| ٦– په ټولګي کې زده کړه بز او د تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل،<br>دتېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره اړیکې ټینګول<br>هڅوونکي پوښتنه:<br>آیا د نقشې د رسمولو په هکله معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –ښوونکي پر تخته د نوي لوست سرلیک لیکي.<br>–ښوونکي په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه کوي.<br>–ښوونکي د مرکاتنور او مخروطي نقشو په اړوند پوښتنې طرحه کوي.<br>–ښوونکي د نقشې رسمول توضیح کوي.<br>–ښوونکي د مولواید نقشې د رسمولو په باره کې بحث کوي.<br>–ښوونکي مهم اوغوره ټکي لیکي<br>–ښوونکي زده کوونکي په ډلو ویشي او د هرې ډلې فعالیت ټاکئ<br>–ښوونکي له زده کوونکو پوښتنې کوي او د لوست ارزونه کوي.<br>–ښوونکي له ټولګي بهر فعالیت توضیح کوي. | –زده کوونکي د نوي لوست سر لیک ته ګوري.<br>–زده کوونکي نوي لوست په پټه خوله لولي.<br>–زده کوونکي د نقشې په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–زده کوونکي نقشې ته پاملرنه کوي او د ښوونکي څرګندونې په غور اوري.<br>–زده کوونکي په تختې لیکنو ته پاملرنه کوي.<br>–زده کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت کې هڅوونکي برخه اخلي.<br>–زده کوونکي مهم ټکي او خپلې پوښتنې وایي.<br>–زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–زده کوونکي له ټولګي څخه بهر فعالیتونه یادداشت او بیایې په کورونو کې ترسره کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱– له اووه ډوله ارتسام سره بلدیو. استوانه یي، مخروطي، مستوي، مولواید، سنوسایدل، ګوډز او ایکرت ارتسامونه.

۲–د استوانه یي ارتسام ځانګړتیاوې یا مرکانتور دا دي چې په سمندري او هوایي چلند اوان چې د مصنوعي سپوږمیو په توغولو او لارې وهلوکې ډیر غوره ګڼل کیږي، د یوې سیمې د زاویې ځاې د بل ځای په اړوند ښیي، غوره استوانه یي ارتسام د مرکاتور نقشې دي چې زیاتره له هغوڅخه کار اخیستل کیږي.

۳–د کاغذ په مخروطي ارتسام کې مخروط د یوه عرض البلد له پاسه او یا د دووعرض البلدو له پاسه د مماس په توګه کیښودل کیږي، په نتیجه کې لاس ته راغلی ارتسام او تولید شوي نقشې ته مخروطي ارتسام وایي، دغه د شکل او ساحې له مخې د ځمکې له سطحې سره مناسب دی.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

جغرافیایي نقشې د هندسي معیارونو له مخې په اووه ډوله تصنیف کیږي چې له استوانه یي یا مرکاتور، مخروطي، مستوي، مولواید، سینو سایدل، ګوډز او ایکرت ارتسام څخه عبارت دي، که څه هم د مرکاتور نقشې مقیاس یوازې د مدارونو په ساحه کې سم دي. په قطبینو کې له حقیقت نه لرې او د استوا له ساحې سره مساوي دی، چې دغه تشه د مرکاتور ارتسام له ستونزې څخه ده، خو د بین المللي کارونې له پلوه نړیوال ارزښت لري.

په مخروطي ارتسام کې چې پر و جکش د عرض البلد په یوه دایره او یا دوو دایرو یا د عرض البلد له زیاتو دایرو سره مماس دی، د مماس په ساحوکې د نقشې مقیاس د قناعت وړ او سم دی.

په مستوي ارتسام کې د ارتسام کاغذ د مجسمې کرې په یوه برخه په ځانګړې ډول په قطبینو کې عملي کیږي.

د مولواید، ایکرت او سینوسایدل ارتسام د طول البلد او عرض البلد د هندسي دایرو تنظیم دي چې په بشپړ مهارت سره دغه ارتسامونه د یوې جغرافیایي نقشې په شکل برابر شوي او ټولې لویې وچې او سمندرونه په کې ځای کړای شویدي، له دې جملې څخه مولواید ارتسام په جغرافیایي نقشو کې زیات مطلوب دی او په ښه توګه ترې کار اخیستل کیږي.

# د شپږم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د مصنوعي سپوږمکیو له انځورونو څخه کار اخېستل | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندنۍ موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخه:<br>–د مصنوعي سپوږمکیو له انځورونوسره بشپړه بلدتیا پیدا کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–زده کوونکیبه له مصنوعي سپوږمکیو څخه له کار اخیستلو سره بلدشي.<br>–د مصنوعي سپوږمکیو د انځوروونو له ګټو سره به بلد شي.<br>–زده کوونکي به د غرونو د لړیو د لوري موقعیت د مصنوعي سپوږمکیو د انځورونو پر بنسټ رسم کړي. | |
| ۳–د تدریس میتودونه | فضایي عکسونه ښیي، توضیحي او ډله ییز کار، په مصنوعي عکسونو، عملي کار، تر سره کوي | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې تړلي عکسونه که امکان ولري جغرافیایي ویدیویي، تلویزیوني، فلمونه او د کمپیوټر سي ډي ګانې | |
| ۵–د ارزونې لار | تحریري او شفاهي لنډ ځوابه پوښتنې، د ټولګې د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار او دښوونکي د یادداشت کتابچه | |
| ٦– په ټولګي کې زده کړه ېز او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولګي بهر فعالیتونه دتېر لوست ارزونه، د نوي لوست اوزاړه لوست تر منځ اړیکه رامنځ ته کول.<br>هڅونکي پوښتنې:<br>آیا د مصنوعي سپوږمکیو له انځورونو څخه د ګټې اخیستلو په اړوند معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه او د موخو زده کړه او ارزونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکي.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د مصنوعي سپوږمکیو د انځورونو د ګټې په اړه دې پوښتنې طرحه کړئ.<br>–دکرنې او ښار په مطالعه کې د مصنوعیسپوږمیو له عکسونو څخه دکار اخیستل توضیح کړئ.<br>–پر تختې باندې د لوست مهمې برخې ولیکئ.<br>–زده کوونکي په ډلو وویشئ او د هرې ډلې فعالیت وټاکئ.<br>–ښوونکي پوښتنې طرحه او دلوست ارزونه وکړي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سر لیک ته ګوري.<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د نقشې په اړه د نظر ښکاره کول<br>–فضایي عکسونو ته پاملرنه کوي او<br>د ښوونکي څرګندونې په غور اوري<br>–مهم ټکي او خپلې پوښتنې دې کوي.<br>–په تختې نصب شوي عکسونه ګوري او دهغو په هکله تبصره کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیتونه تر سره کړئ | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

**۱**–د مصنوعي سپوږمکیو د انځوروونو په واسطه د وچو ټو ټو شکل او د لویو وچو ساحلونه ښه ثا بتیږي چې د جیولوجیکي او کارتو ګرافي پوهانو له پاره اسانتیاوي برابر وي.

**۲**–په مصنوعي سپوږمیوکې د کرنې برخه سمسوره او اواره څرګندیږي.

**۳**–د ځمکې انځورونو اخیستل چې د مصنوعي سپوږمکیو په واسط اخیستل شوي وو، ځمکه په کروي شکل ښيي. په فضا کې ځوړند(معلقه) او د لمر چاپیره ګرځي.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د مصنوعي سپوږ میو عکسونه د جغرافیایي موضوعګانو د تحلیل اوتفسیر له پاره ډیر په زړه پورې، د استفادې وړ دي او زده کوونکي یې باید په ارزښت پوه شي.

د ځمکې عکس اخیستل چې له مصنوعي سپوږ میو څخه تر سره کیږي، ځمکه په کروي شکل ښيي او په فضا کې ځوړنده(معلقه) ده او دلمر چاپیره څرخي.

ټولې مصنوعې سپوږمۍ چې له ځمکې چاپیره ګرځي، بیضوي مدار لري، په مختلف لوړوالي له ( ۷۰۰– څخه تر ۳۰۰۰ کیلو مترو پورې تنظیمیږي.

د مصنوعي سپوږمیو عکسونه د توپوګرافي د وضعې په تحقیق او د مځکې په جوړښت کې مهم رول لري، د جیولوجیکي جوړښتونو په اړوند، ماتي، طبیعي سرچینې، تر ځمکې لاندې اوبه، کانونه، منرالونه، اوبه لرونکي حوزې، د یخچالونو حالت، د ځنګلونو پراختیا، د ساحلونو غاړې، د روانو اوبو شبکې، د سیندونو څرنګوالی او خط السیر او یخچالي جهیلونو په اړوند ښکاره معلومات ورکوي.

د بشري مشخصاتو له پلوه د نفوسزیاتوالی، د کلیو او ښارونو مواصلاتي کربښې، د لویو لارو ترافیکي حالت او ښارونه په غور مطالعه کولی شي.

صنعتي مرکزونه، د بندرونو حالت، سمندري ترافیک، او دغه شان نور په هوایي انځورونو کې جوتیږي، د طیفون، هری کن او سیلاوونو طوفاني تګلاره ټول په انځورونو کې مطالعه او ثابتیدلی شي.

# د اووم لوست د تدریس لارښود پلان

(یو درسي ساعت)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د افغانستان اقلیم | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–له اقلیمي مهمو فکتورونو سره به بشپړه بلدتیا پیدا کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–د اقلیم اصلي عناصر ( لکه تودوخه، لنده بل، اورښت او د بادونو لګیدل) به وپیژني<br>–هغه فکتورونه چې پر اقلیم تاثیر لري نومونه به یې واخلي.<br>–په دې به وپوهیږي چې افغانستان په کومه اقلیمي سیمه کې پروت دی.<br>–د اقلیمي عناصرو نومونه به واخیستلی شي؟<br>–په نقشه کې به د افغانستان اقلیمي سیمې وښیي. | |
| ۳–د تدریس میتودونه | تشریحي، پوښتنه او ځواب، ډله ییز بحث. | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، د افغانستان اقلیمي نقشه، تخته، تباشیر، د کتاب عکسونه، چارتونه، اقلیمي ګرافونه او دښوونکي لاروښود کتاب | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري، شفاهي، عملي کار | |
| ۶–په ټولګي کې زده کړه ښو او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټو لګي تنظیم، حاضرۍ اخیستل، د زاړه لوست پوښتنه. د کورنۍ کار کتل او له تېر لوست سره د نوي لوست اړیکې رامنځ ته کول | وخت په دقیقو |
| | –هڅوونکې پوښتنه:<br>زموږد هېواد د اقلیم په ډولونو کې کوم عوامل اغیزناک دي؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه او د موخو زده کړه او ارزونه | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک ليکي.<br>–د نوي لوستپه اړوند پوښتنې کوي.<br>–ايا اقليم د انسانانو په ژوندانه اغيز لري؟<br>–په تختې د افغانستان د اقليم د نقشې ځړول.<br>–په پټه خوله د نوي لوست د مطالعې سپارښتنه کوي.<br>– ستونزمن لغتونه او اصطلاحگانې حل کوي.<br>–په تختې د تودوخې، لنده بل، اوربښت او باران مهم ټکي ليکي<br>–نوي لوست (مهم اقليمي فکتورونه) تشريح کوي.<br>–زده کوونکي په ډلو ويشل<br>–له ډله ييز فعاليت څخه کتنه او لارښوونې<br><br>–د ارزونې په موخه د لوست د وروستنيو پوښتنو طرح کول.<br>د نوي لوست لنډيز وايي او زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري | –د ښوونکي څرگندونو ته ژوره پاملرنه کوي.<br>– پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د اقليم د اغيز پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br>–د اقليم نقشې ته په پوره غور گوري او په پټه خوله نوي لوست مطالعه کوي.<br>–د نوي لوست د لغتونو او اصطلاحاتو پوښتنه کوي.<br>–د لنده بل، اوربښت او باران په اړوند څرگندونو ته پاملرنه کوي.<br>–د ټولگي په فعاليت کې گډون کوي د مهمو ټکو يادداشت اخلي.<br>–د فعاليت نتيجه د ټولگي په مخ کې ليکي<br>–د لوست د پای پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–په ډله ييزو کارونو کې رغنده برخه اخلي.<br>–له ټولگي څخه بهر فعاليت ته په ځير گوري | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست اړوند پوښتنوته ځوابونه**

د لومړۍ پوښتنې ځواب: د اقليم اغيز ناک عوامل، دلمر وړانگو د لگيدلو زاويه، جغرافيايي عرض، لوړ او ټيټ فشار، د سمندر له سطحيڅخه لوړوالی، سمندري جريانونو، د هوايي کتلو، له سمندرڅخه لرې والي او نژديوالی او داسې نورو څخه عبارت دی.

سمې جملې د (س) په توري او نا سمې د (ن) په توري په نښه کړئ

۱–س

۲–س

۳–س

**۹-د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

**د افغانستان په اقلیم عمومي نظر:**

په مترولوژي کې د اقلیم موضوع له ډېرو مهمو، اساسي او فوق العاده موضوعګانو څخه ګڼل کیږي او هم د انسان او نورو حشراتو په ژوند مستقیماً اغیزه کوي.

د اقلیم پیژندنه: اقلیم د جوي عواملو، جوي اثارو او مترولوژي له ټولګې څخه عبارت دی. چې د تودوخې، لنده بل، اوربښت، فشار او دغه شان د باد لګېدلو د منځنې کچې ځانګړتیاوې لږ تر لږه یې۳۰ یا ۴۰ کاله یې مطالعه کوي.

-په غرنیو هېوادونو، لکه افغانستان کې د هوا پیژندنې دستګاوې د بېلا بیلو سیمو د جوي حالت د ټاکلو او ثابتولو له پـــاره ځاي پر ځاي او په کار اچوي. چې په پاې کې د اقلیمي غوره او موثقو نتیجو د لاس ته راوړلو له مهمو او اساســـي غـــوره موضوعګانو څخه ګڼل کیږي.

د جوي اثارو مهم، غوره عوامل او شرایط چې د افغانستان اقلیم جوړوي، په دې ډول دي.

– د لمر د ځلیدو زاویه: لکه چې مطالعه شوي په کابل کې د لمر د ځلیدو زاویه د چنګاښ په اول ۷۸درجې او ۵۷ دقیقـــو ده، ځکه هوا توده وي.

خو دحمل او میزان په اول په کابل کې د لمر د ځلیدلو زاویه ۵۵ درجې او ۲۸ دقیقې وي، نو په منې او پسرلي کـــې هـــوا معتدله او دجدي په لومړۍد لمر د ځلیدو زاویه ۴۰ درجې او ۵۸ دقیقې وي، نو هوا سړه وي.

– د جغرافیایي عرض البلد موقعیت: دغه عامل په یوکال کې زموږ د هېواد اقلیمي مهمې نتیجې رامنځ ته کوي، لکـــه چـــې زموږ د هېواد د شمالي عرض البلد په ۲۹ درجو او ۳۰ دقیقو او ۳۸ درجو او ۳۱ دقیقو کې پروت دی. کله چـــې د لمـــر وړانګې په استوا خط عمود وي، د افغانستان په جنوبي سیمه کې دلمر وړانګې میلان ٦۰ درجې ۳۰ دقیقو او د افغانســـتان په بشپړه شمالي برخه کې ۵۱ درجې او ۲۳دقیقووي.

– د ټیټ او لوړ فشار اغیز ناک جوړښت هم غوره او مهم عامل دی.

– لنده بل لرونکي هوایي کتلې چې دکال په مختلفو موسمونو کې افغانستان ته له بیلو خوا وو څخه د اخلیږي، هم د هېواد په اقلیم اغیز کوي.

– لوړ والی هم د هېواد په اقلیمي حالت کې اساسي عامل دی او د ځمکې د جوړښت د حالت له مخې فوق العاده اقلیمـــي موضوع رامنځته کوي. افغانستان غرنی هېواد دی، تو پوګرافي وضعه او د غرونو د واقع کیدلو لوری یې څرګنـــد اقلیمـــي عامل جوړ وي، ځکه چې د تودوخې درجه له لوړوالي سره معکوس تناسب لري، نو په لوړو غرنیـــو ځـــایونو کـــې زیـــاتره یخچالونه لیدل کیږي

## د اتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>۱-د لوست موضوع</td><td colspan="2">تو دوخه</td></tr>
<tr><td>۲-دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې.</td><td colspan="2">ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>د لوړ تیا له مخېبه د تودوخې په بدلون پوه شي.<br>-ځانګړي موخې:<br>دکال موسمونه به په شکل کې رسم کړي.<br>-زده کوونکي به پوه شي چې ۲۴ ساعته یوه شپه او ورځ کیږي<br>-زده کوونکي به پوه شي چې عرض البلدونه پر اقلیم اغیزه لري.</td></tr>
<tr><td>۳-د تدریس میتودونه</td><td colspan="2">تشریحې، پوښتنه او ځواب، ډله ییز بحث</td></tr>
<tr><td>۴-د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">کتاب، نقشه، مجسمه کره، تخته او تباشیراو د کتاب عکسونه.</td></tr>
<tr><td>۵-د ارزونې لارې</td><td colspan="2">تحریري او شفاهي، عملي کار لنډ ځوابه پوښتنې</td></tr>
<tr><td>۶- په ټولګي کې زده کړه ېز او تدریس لومړني فعالیتونه</td><td>سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، حاضرۍ اخیستل، د زاړه لوست پوښتنه، د کورني کار کتل او له نوي لوست سره اړیکې ټینګول.<br>- هڅوونکي پوښتنه.<br>کوم اقلیمي عناصر د کال په اوږدوکې د هېواد پر اقلیم اغیزه لري؟</td><td>وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړ ې فعالیتونه | وخت په دقیقه |
|---|---|---|
| –ښوونکي د نوي لوست سرلیک په تختې لیکي<br>–له تېر لوست څخه پوښتنې کوي.<br>–د ټولګي مخې ته د افغانستان اقلیمي نقشې ځړوي<br>–د نوي لوست په پېټه خوله سپار ښتنه کوي.<br>– ستونزمن لغتونه او اصطلاحګانې حل کوي.<br>–پر تختې باندې د لوست مهمې برخې لیکي.<br>– د نوي لوست شرحه (تودوخه)<br>–په ډلو کې د زده کوونکو ویشل تر سره کوي.<br>–د ډلو په استازو د ټولګي په مخ کې نتیجې وایي<br>–د لوست لنډیز وړاندې کوي.<br>–دلوست دپاې پوښتنې کوي.<br>–له ټولګي بهر د فعالیت سپارښتنه کوي. | د نوي لوست سر لیک ته ګوري.<br>د نوي لوست د سر لیک نقشې مطالعه کول<br>په پټه خوله د لوست مطالعه کول<br>د لوست د ستونزمنو لغتونو او اصطلاحګانو پوښتنه<br>د نوي لوست (تودوخې) شرحې ته غوږ نیول<br>–د ټولګي د ننه فعالیت کې برخه اخلي<br>–د ډلو په فعالیت کې د نوي لوست شرحه کول<br>–د خپلو استازو په واسطه د ډلو کار تشریح کول<br>–وروستی نتیجه وړاندې کوي<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کول<br>–د لوست د پای پوښتنوته ځواب وایي<br>–له ټولګي څخه د بهر فعالیت ته غور کول | ۳۵<br>دقیقې |

۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:

د (۱) پوښتنې ځواب: تودوخه د طبیعي ځانګړتیا له یو عنصر څخه عبارت ده.

د (۲) پوښتنې ځواب: هغه وخت چې لمر وړانګې له اتموسفیر څخه ځمکې مخ ته رسیږي.

د (۳) پوښتنې ځواب: افغانستان د ۲۹ درجو، ۳۰ دقیقو او ۳۸درجو ۳۱ دقیقو شمالي عرض البلدونو ترمنځ پروت دی.

د (۴) پوښتنې ځواب: افغانستان یو لوړ او غرنی هیواد دی.

**۹-د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

تودوخه: د یوې سیمې اقلیم اساسي عنصر ګڼل کیږي. تودوخه د ځمکې د مخ په ټولو ځایونو کې یو ډول نه ده، بلکې په مختلفو ځایونو کې په مختلفو درجو شتون لري، د یوې سیمې د تودوخې درجه دوخت په اوږ دوالي د عرض البلد دایرې لوړ والي او نورو پورې اړوند دي، نو هر کله چې د کابل، جلال اباد او چغچران د تودوخې درجه چې تقریبا په یو عرض البلد کې واقع دي، په نظر کې ونیسو، لیدل کیږي چې د دې ځایونو هر یو د ارتفاع له مخې زیات اختلاف لري، له دې کبله د کال په اوږ دوکې د هغو د تو دوخې درجه هم زیات اختلاف لري، نو هر څو مره چې ارتفاع زیاته شي، د تودوخي د درجې اندازه کمیږي، لکه څنګه چې واضح شوي ده، د تودوخې درجه په هر سل متره ارتفاع کې په مرطو بو ځایونو کې ۰.٦۵ درجې او په وچو ځایونو کې تقریبا یوه درجه ټیټیږي، که وغواړو چې د یوې سیمې د تودوخې درجه و څېړو، باید د یوې سیمې منځنۍ کچه د څو کلونو په اوږدوکې مطالعه کړو، او سط یې پیدا کوو، د یوې سیمې د منځنۍ تودوخې درجه معلومیږي، په یوه سیمه کې چې هر څو مره د تودوخې درجه زیاته وي، دابښیې چې دغه سیمه یوه غرنۍ او یا بیدیانۍ منطقه ده

$$\frac{\text{اعظمي تودوخه + اصغري تودوخه}}{۲} = \text{د ورځې منځنۍ تودوخه}$$

$$\frac{\text{د کال د ۱۲ میاشتو تودوخه}}{۱۲} = \text{کالنۍ منځنۍ تودوخه}$$

$$\frac{\text{څو کلنه منځنۍ تودوخه}}{M\text{(د کلونو په شمیر)}} = \text{څو کلنه منځنۍ تودوخه}$$

## د نهم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت) ۴۵ دقیقې**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | لنده بل، د هوا فشار او د بادونو لګېدل | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پاې کې لاندنې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د افغانستان په اقلیم کې به د لنده بل وضعیت وپېژني<br>ځانګړي موخې:<br>–په دې به پوه شي چې کوم عوامل په لنده بل اغیزه لري<br>–د افغانستان مرطوبې سیمې به په نقشه کې وښي<br>–په سیمه کې به د لنده بل وضعیت بیان کړای شي. | |
| ۳–د تدریس میتود او لار | تشریحي، پوښتنې او ځواب، ډله ییز بحث | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | درسي کتاب، د افغانستان اقلیمي نقشه، تخته او تباشیر، حاضرۍ اخیستل، دکتاب عکسونه د ښوونکي لارښود کتاب | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي، عملي کار | |
| ۶–په ټولګي کې زده کړه بز او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، د زاړه لوست پوښتنه کول، د کورنۍ کار پوښتنه، دنوې او زاړه لوست ترمنځ اړیکې رامنځ ته کول. | وختپه دقیقو |
| | هڅوونکي پوښتنه<br>–آیا پوهیږئ د افغانستان په اقلیمي حالت کې لنده بل څه اغیزه لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک لیکل<br>–انګیزه یي پوښتنې کول<br>–د ټولګي په مخ کې د افغاسنتان د اقلیمي نقشې ځړول.<br>–په پټه خوله د نوي لوست د لوستلو سپار ښتنه<br>–د ستونزمنو لغتونو او اصطلاحګانو حل کول<br>–پر تختې باندې د لوست د مهمو برخو لیکل او شرحه کول<br>–په ډلو کې د زده کوونکو تنظیمول، د ډلو څارنه او لارښوونه او بیا د ډلې په استازې د هرې ډلې معلومات لولي<br>–د ارزونې په موخه د لوست د ورستنیو پوښتنو طرحه کول.<br>–له ټولګي بهر فعالیت سپار ښتنه کوي. | –د نوي لوست سر لیک ته ګوري.<br>–انګیزه یي پوښتنې ته ځواب ورکوي.<br>–د نقشې په هکله نظر ښکاره کوي.<br>–په پټه خوله لوستل او د لوست د ستونزمنو لغتونو او اصطلاحګانو پوښتنه کوي.<br>–د نوي لوست شرحې ته غوږ نیسي<br>–په ډلو کې برخه واخلي او د ښوونکي لارښوونې ته پاملرنه کوي.<br>–د فعالیت نتیجه دې په ټولګي کې وایي.<br>–له ټولګي بهر فعالیتونو ته پاملرنه کوي.<br>–د پوښتنو ځوابونه وایې. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–د میاشتې او کال په اوږدوکې لنده بل د یوې سیمې په جوي شرایطو او اقلیمي حالاتو باندې مستقیمه اغېزه لري.

۲–د یو ځای د اقلیم په بدلون کې بادونه ډېر اغیز ناک دي، بادونه تل د لوړ فشار له مرکز څخه د ټیټو فشارونو د مرکزونو په لوري حرکت کوي، د ساري په توګه پروان او هرات د ۱۲۰ ورځو بادونه چې د لوړ فشار له مرکز څخه د ټیټ فشار په لوري حرکت کوي.

۳–د ټیټ فشار په ساحه د استوا په کرښه او د لوړ فشار ساحه د سرطان او جدي په دایره تشکیلیږي.

۴–ډېر ټیټ فشار د زمري په میاشت کې او ډېر لوړ فشار مرغومي(جدي) په میاشت کې وي.

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

لنده بل–د يوې سيمې لنده بل او اورښت، د هوا د فشار د مرکزونو د ځمکني جوړښت او پهسرو او گرمو جبهو پورې مستقيم تړاو لري. د اورښت اندازه زياتره په هغو سيمو کې چې ټيټ فشار لري، زياته وي، خو په لوړو سيمو او غرونو کې چې د تودوخې درجه په کې نسبتا ټيټه ده، لنده بل ژر د اشباع حالت غوره کوي، له دې کبله په لوړو ځايونو او د غرونو په لړۍ کې اورښت زيات وي. کله کله د سړې او گرمې جبهې ټکر په صحرايي ځايونو کې په موقتي توگه اورښت او کله په پرله پسې توگه اورښت رامنځته کوي.

د جغرافيايي موقعيت له پلوه هغه ځايونه چې د لوړ فشار په ساحه کې دې، د دي سبب کيږي، چې دوچ اونيم صحرايي اقليم ځانگړتياوې افغانستان ته ډالۍ کړي، ځکه چې په عمومي توگه صافه هوا، کم لنده بل، د تودوخې د درجې اختلاف اوکم دوامه اورښتونو افغانستان ته وچ اقليم ورکړيدی او د سړې هوا کتلې چې دکال په مختلفو سيمو کې افغانستان تر اغيزې لاندې راولي، د لنده بل د پيدا کيدو او اورښت سبب گرځي. د ژمي په موسم کې د سايبريا سړې جبهې د هيواد شمالي سيمو ته ننوځي، د واورې اوريدلو سبب کيږي د اوړي په موسم کې د هند د مونسون تودې کتلې د ختيځ او جنوب ختيځ له لوري زمونږ خاورې ته را ننوځي، د سپين غره په لوړو برخو او د سليمان د غرونو په لړۍ کې او د دغو غرونو د لړۍ په لمنو کې اورښت پيدا کوي. دجلال آباد په شاوخوا کې د تودو بادونو سبب کيږی، د ژمي د موسم په پای او د پسرلي په لومړيو کې هغه لند بل چې د اطلس له اوقيانوس څخه سرچينه اخلي، مرکزي لوړې سطحې او د هندوکش نورې غرنۍ سيمې تر اغيزې لاندې راولي، د اوړي، په موسم کې د فارس د خليج مرطوبه هوا افغانستان ته راننوځي، په غرنيو سيمو کې موقت او کم دوامه اورښت منځته راوړي.

# د لسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د افغانستان اقلیمي سیمې | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پاې کې لاندنې موخې تر لاسه کړې.<br>–عمومي موخې:<br>–د افغانستان له اقلیمي سیمو سره به بلد شي.<br>ځانګړی موخې:<br>–په افغانستان کې به د اقلیمونو له څرنګوالي څخه خبر شي.<br>–په دې به پوه شي چې د افغانستان سیمې د لوړتیا له کبله کوم اقلیمي صفتونه لري.<br>–د افغانستان په نقشه کې به د اقلیم ډولونه وښیي.<br>–د افغانستان د اقلیمي سیمو نومونه به واخیستلای شي. | |
| ۳–د تدریس میتود او لار | تشریحي، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز بحث | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، د افغانستان د اقلیم نقشه، تخته او تباشیر، د کتاب عکسونه او د ښوونکي لار ښود کتاب. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري شفاهي، عملي کار | |
| ٦– په ټولګي کې زده کړه ښز او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ د ټولګي تنظیم، حاضری اخیستل، د زاړه لوست پوښتنه، د کورني کار کتنه، د تېر او نوي لوست ترمنځ د اړیکې ټینګول<br>هڅوونکي پوښتنه<br>ایا د افغاسنتان د اقلیمي سیمو څرنګوالی بیانولی شئ؟ | وختپه دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده کوونکو د زده کړ ې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ او دافغانستان د اقليم نقشې وځړوئ<br>–په پټه خوله د نوي لوست مطالعه کول<br>– ستونزمن لغتونه او اصطلاحگانې حل کړئ.<br>–دافغانستان اقليمي سيمې تشريح کړئ.<br>–په ډلو کې د زده کوونکو تنظيمول او د ټولگي د ننه فعاليت تر سره کړئ.<br>–د ډلو لارښوونه او څارنه وکړئ.<br>–د لوست په پاې کې د ارزونې د پوښتنو سپارښتنه وکړئ.<br>–له ټولگي بهر فعاليت سپارښتنه وکړئ. | –د نوي لوست سرليک او د افغانستان اقليمي نقشه گوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–ستونزمن لغتونه او اصطلاحگانې په خپله کتابچه کې ليکي.<br>–د نوي لوست غوره او مهم ټکي يادداشت کوي.<br>–د نوي لوست تشريح ته په غور غوږ نيسي<br>–په تنظيم شوو ډ لو او د ټولگي په فعاليت کې زياته برخه اخلي<br>–د لوست په پای کې پوښتنو ته ځواب وايي<br>–له ټولگي نه بهر فعاليت په اړوند يادداشت اخلي | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

۱–د جلال آباد اقليم لاندې ځانگړتياوي لري، وچ او تود اوړی، په ژمي کې ډير اورښت او په اوړي کې د تودوخې د منځنۍ درجې لوړوالي.

۲–په جلال آباد کې اورښت عموماً د باران په ډول وي او واوره نه وريږي، يوازې د سپين غره په ۹۰۰ مترو لوړوالي کې واوري ليدل کيږي.

۳–د (ب)ځواب سم دي

۴–د (د) ځواب سم دي

نا سم دي

نا سم دي

نا سم دي

سم دي

**۹- ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د افغانستان اقليمي سيمې:**

**د افغانستان اقليمي سيمې په لاندې ترتيب تنظيميږي.**

**-صحرايي اقليم**

**-مونسوني اقليم**

**-مديترانه يي اقليم**

**-په اوارو ځايونوکې د ۱۰۰۰ او۲۵۰۰ مترو ترمنځ د ستپ اقليم.**

**د۲۵۰۰ او ۳۰۰۰ مترو تر منځ د تندرالپاين د ناحيې اقليم.**

**د ۳۰۰۰ مترو اوله هغو څخه لوړ غرنۍ اقليم.**

**صحرايي اقليم: د صحرايي اقليم صفتونه اومشخصات دا دي چې د کال په اوږدو کې د اورښت کچه او اندازه فوق العاده کمه او وقفه يې وي او مياشتنۍ منځنۍ اورښت له ۵-۱۰ ملي متروڅخه تيرى نه کوي، د شپې ورځې په اوږدوکې د تودوخې درجې بدلون په اوړي اوژمي کې ډېر ليدل کيږي.**

**د ستپ سيمې اقليم: هغه څرګندې ځانګړتياوې چې له ستپ اقليم څخه نمايندګي کوي، له وچې اب او هوا څخه عبارت دى. د تودوخې د درجې اختلاف د سانتي ګريد له ۲۰ درجو نه زياتيږي، اورښت په عمومې توګه د ژمي په موسم کې واقع کيږي او زياتره علفزاروي، په ځينو ځايونو کې د تيټ قد لرونکو بوټو او په ځينو ځايو کې د کرکو بوټو پراخې سيمې نيولې دي. او په د وو بيلا بيلو سيمو ويشل شويدي، شمالي ستپ او جنوبي ستپ،**

**الپاين تندرا اقليم: د الپاين تندرا اقليم په ټولو ځايونو د لوړو قد لرونکو ونو د ودې له سيمو څخه پورته ليدل کيږي.خو موقعيت يې له يوې اقليمي سيمې څخه بلې اقليمي سيمې ته بدلون کوي. په افغانستان کې دغه سيمې په عمومي توګه له ۳۰۰۰ مترو لوړوالي څخه پورته ليدلى شو، د الپاين تندرا په شاوخواکې د تودوخې درجې توپير هم زيات وي، د کرنې دودې فصل ډېر لنډ او يخنې يې نه پريږ دي چې حبوبات په کې وکرل شي.**

## د یوولسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | د ستپ سیمو اقلیم | |
| ۲-دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د افغانستان له ستپ اقلیم سره به بلد شي<br>ځانگړی موخې:<br>-د غرني او ستپ اقلیم څرنگوالي به وپیژني.<br>-د ستپ اقلیم د صفتونو په اړه به معلومات ترلاسه کړي<br>-غرنی او ستپ اقلیم به سره بیل کړای شي<br>-د هغو سیمو په اړوند به معلومات پیدا کړي چې ستپ اقلیم لري<br>-د هېواد د ستپ سیمې به په اقلیمي نقشه کې وښیي. | |
| ۳-د تدریس میتود | تشریحي، پوښتنې او ځواب، ډله ییز بحث | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | کتاب، دافغانستان اقلیمی نقشه، تخته او تباشیر، د کتاب عکسونه او د ښوونکي لارښود کتاب | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحریري، شفاهي، عملي کار | |
| ٦- په ټولگي کې زده کړه ښ او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، د زاړه لوست پوښتنې، له ټولگي څخه بهر فعالیت کتل، د تېر او نوي لوست ترمنځ اړیکې ټینگول.<br>هڅوونکي پوښتنه:<br>- ایا پوهیږئ چې ستپ اقلیم څه ځانگړتیاوي لري؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده کوونکو د زده کړ ې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–د ټولګي مخکې د افغانستان نقشې وځړوئ<br>–په پټه خوله د نوي لوست د مطالعې سپار ښتنه وکړئ.<br>–پر تختې د نوي لوست مهم ټکي وليکئ.<br>– نوي لوست تشريح او توضيح کړئ.<br>–په ډلو د زده کوونکو ويشلو لارښوونه وکړئ.<br>–د لوست د پای پوښتنې وکړئ.<br>–له ټولګي بهر فعاليت سپارښتنه وکړئ. | –د نوي لوست سر ليک ته ګوري.<br>–د افغانستان اقليمي نقشې ته پاملرنه کوي.<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د ستونزمنو لغتونو او اصطلاحګانو پوښتنه کوي.<br>–د نوي لوست تشريح ته غوږ نيسي<br>–په ټولګي کې دننه فعاليت کې برخه اخلي<br>–د لوست د پای پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–له ټولګي ځخه بهر فعاليت ته پاملرنه کوي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

سم ځواب په نښه کړی.

د لومړۍ پوښتنې ځواب سم دی

د دويمې پوښتنې ځواب غلط دی

د دريمې پوښتنې ځواب سم دی

د څلورمې پوښتنې ځواب غلط دی

د پنځمې پوښتنې ځواب سم دی

د شپږمې پوښتنې ځواب سم دی

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

–غرنی اقلیم: په لوړو او غرنیو ځایونو کې د تودوخې درجه فوق العاده ټیټیږي. بر خلاف د اورښت اندازه او د هوا لنده بل زیاتیږي. په لوړ و ځایونو کې د اوړي او ژمي د میاشتو د شپې او ورځې د تودوخې د درجې اختلاف ټیټ وي، د اورښت حالت په لوړو ځایونو کې د هماغې برخې له اقلیم سره په بشپړه توگه پیوستون لري، خود تودوخې درجه او د لمر لگیدلو زاویه د اراضي د میلان له مخې بدلون مومي، په دې معنا چې جنوبي میلان یو څه تود او وچ دی. شمالي میلانونه یې یخ او مرطوب دي. څنگه چې هر ډول مرطوبې کتلې او یاسرې جبې چې د افغانستان د لوړو ځایونو او د غرونو دلړۍ له پاسه تیریږي، د واورې اورید لواو اورښت سبب کیږي. ځکه په لوړو ځایونو کې د هوا تکاثف عمل او اشباع ژر منځته راځي لکه چې په شمالي سالنگ کې د اعظمي او اصغري تودوخې اختلاف ۵۲,٦ درجې او په جنوبي سالنگ کې د سانتي گرید ۴٦,۸ درجو معادل وي، د واورې دایمي اورښت په ختیځ هندوکش او د بابا د غره په ځینو ځایونو کې په تیره د شاه فولادي په گاونډ کې د پخوانیو یخچالونونښې روښانه کوي.

ستپ اقلیم: د ستپ اقلیم د پراختیا ساحه د مونسوني او مدیترانه یي اقلیم په پرتله زیات دی.

ستپ په عمومي توگه په نیمه صحرایي ساحه کې پروت وي، د ستپ په سیمه کې واښه او مختلف حبوبات کرل کیږي چې د هندوکش شمالي او جنوبي لمنې او د پروان  سمیې په بر کې نیسي.

میوه لرونکي او بې میوې ونې هم په دې ځای کې وده اونمو کوي. که دغه لوړې سطحې او غرونه نه وای، بې شکه شگلنو او پراخو دښتو به په هندوکش ځاي نیولی و. له نیکه مرغه له د غې سیمې سره طبیعت مرسته کړي، د هندوکش غرو لړۍ او سپین غره له شتون سره سره په افغانستان کې یې پراخه د ښتي له منځه وړي دي. د ستپ سیمه وچه اب او هوا لري. د شپې او ورځې تودوخه یې له ۲۰ درجو زیاتی نه کوي، د هندوکش د غرونو لړۍ د ستپ برخه په دوو سیمو ویشلي ده، دهندوکش دغره شمالي او جنوبي ستیپ سیمې.

## د دولسم لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت (یو درسي ساعت)

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>۱–د لوست موضوع</td><td colspan="2">د افغانستان جیولوجیکي حالت</td></tr>
<tr><td>۲–دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې</td><td colspan="2">ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د افغانستان له جیولوجیکي حالت سره به بشپړه بلدتیا پیداکړي<br>ځانګړې موخې:<br>–د افغانستان له جیولوجیکي حالت سره به بلدشي<br>–د جیولوجیکي مختلفو دورو د بدلونونو سره به مینه پیدا کړي.<br>–په یوه دیاګرام کې جیولوجیکي مختلفې دورې رسم کړئ.</td></tr>
<tr><td>۳–د تدریس میتود</td><td colspan="2">توضیحي، مباحثه یي، ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه</td></tr>
<tr><td>۴–د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د ځمکې د جوړښتونو او شکلونو بیلې بیلې نقشې، په لوست پورې اړوند عکسونه، د امکان په صورت کې د کمپیوټر له سي ډي ګانو او انټرنټ کار اخیستل.</td></tr>
<tr><td>۵–د ارزونې لارې</td><td colspan="2">تحریري، شفاهي، د فعالیتونو ارزونه، لنډ ځوابه پوښتنې، عملي کار</td></tr>
<tr><td>۶– په ټولګي کې زده کړه ښ او تدریس لومړنې فعالیتونه</td><td>روغبړ د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، د ټولګي بهر فعالیت، له زاړه لوست سره د نوي لوست ارتباط تامینول، د زاړه لوست په اړه ارزونه<br>– هڅوونکي پوښتنه:<br>ایا د ځمکې د جوړښت د شکلونو په باره کې معلومات لرئ؟</td><td>وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړ ې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پټې خولې مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د افغانستان د جیولوجیکي حالت په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–پر تختې د نوي لوست مهم ټکي ولیکئ.<br>–د افغانستان جیولوجیکي حالت شرحه کړئ.<br>–زده کوونکي په ډلو وویشئ<br>–د نوي لوست په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د ډله ییز کار لارښوونه اوڅارنه وکړئ.<br>–د لوست د پای پوښتنې وکړئ.<br>–د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ.<br>–د ټولګي بهر فعالیت شرحه کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري.<br>–نوي لوست په پټه خوله مطلعه کوي.<br>–د افغانستان د جیولوجیکي حالت په باره کې نظر څرګندوي.<br>–د لوست مهم ټکي یادداشت کوي.<br>–تختې او نقشې ته پاملرنه کوي، د نوي لوست تشریح ته غوږ نیسي.<br>–د نوي لوست پوښتنوته ځواب وایي.<br>–زده کوونکي دې په ډلو کې او د ټولګي د ننه فعالیت کې فعاله ونډه واخلي او د ښوونکي لارښوونې تر سره کوي.<br>–د نوي لوست د پای پوښتنوته ځواب وایي<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت یادداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

**۱ – لومړۍ شمیره سمه ده**

**۲–دویمه شمیره سمه ده**

**۲–رسوبیتیږې چې زموږ په هېواد کې د میزوزویک له دریم عهد څخه شتون لري، شګلنې تیږې، شیلونه او کانګلو مراتونه دي چې د هندوکش په جنوبي برخو کې لیدل کیږي.**

**۳–په کواترنري دوره کې جوړښتونه پهعمومي توګه د افغانستان په جنوب غرب کې د نیمروز، مارجې، نوزاد، ګودزیره دښتې او په نورو برخو، لکه فراه. هلمند، کندهار او زابل کې رامنځته شویدي.**

**۹–د ښوونکی له پاره اضافي معلومات**

افغانستان یو غرنۍ هیواد دي چې له $\frac{۱}{۳}$ څخه زیاته برخه یې د غرونو لړیو نیولي ده چې زیاتره دهمالیې د غرونولړۍ اوله بلې خوا د لویدیځې اسیا د غرونو لړۍ سره اړوند دی. د اسیا د فزیکي نقشې له کتنې څرګندیږي چې د منځنۍ اسیا لوړ ځایونه د لوړوالي له نظره د نړۍ له مهمو غرونو څخه شمیرل کیږي چې ختیځې سیمې یې ډیرې لوړې، خو لویدیځې برخې یې ډېره ارتفاع نه لري

د غرونودغه لړۍ دختیځ له خوا د لویدیځ په لور پراته دي.

د افغانستان غرونه هم له خیتځ څخه لویدیځ خواته پراته دي، نوموړي غرونه په خپل اوږدوالي کې د ختیځ له خوا لویدیځ لورته په ځوځانګو ویشل شویدي او له بلې خوا یې لوړ والی له ختیځ څخه د لویدیځ په لور لږ لږ کمیږي او په پای کې په اوارو ځمکو او جبو پای ته رسیږي.

د مرکزي آسیا په برخه کې چې نن د ځمکې د کرې ډیره لوړه سیمه جوړوي او د نړۍ په بام شهرت لري، د ځمکې پیژندنې په دویم عهد کې یو سمندر شتون درلود چې د اطلس سمندرېې د الکاهل له سمندر سره یو ځای کاوه. دغه سمندر د ځمکې پیژندنې د پوهانو په واسطه د تیتس په نامه یاد شوي دي چې شمالي لویه وچه یې (Angara) او جنوبي لویه وچه یې (Gondvana)سره بیلولې د وخت په تېریدلو شمالي اوجنوبي طبقاتو د دوه اړخیزفشار په پای کې او غرونود راپورته کیدلو حرکتونو کرار کرار د تیتس رسوبات لوړ کړل، په پای کې یې موجود غرونه منځته راوړل چې له ختیځ څخه دلویدیځ په لور پراته دي.

## د دیارلسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د ځمکو جوړښت اوشکلونه | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د اراضي له جوړښت او شکلونو سره به بشړه بلدتیا پیدا کړي<br>ځانګړی موخې:<br>–د اراضی له جوړښت او شکلونو سره به بلدشي.<br>–لوړې، وتلي او ننوتلي او اواري سیمې رسمې کړي.<br>–د افغانستان د لړو لوړو سیمو په باره کې به معلومات او مینه پیدا کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | توضیحي، مباحثه یي، ډله‌ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکې | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د اراضی نقشه شکلونه او جوړښت، د لوست اړوند عکسونه د امکان په صورت کې د کمپیوټر له سي ډي ګانو او انترنټ څخه کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري، شفاهي، د فعالیتونو ارزونه، لنډ ځواب پوښتنې، عملي کار | |
| ٦– په ټولګي کې زده کړه بز او د تدریس لومړنې فعالیتونه | روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضری اخیستل، له ټولګي بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه له زاړه لوست سره د نوي لوست ارتباط تامینول.<br>هڅوونکي پوښتنه<br>ایا د اراضي د جوړښت او شکلونو په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پېټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د اراضي د جوړښت او شکلونو په هکله ځانګړې پوښتنې.<br>–پر تختې د لوست مهم ټکي ولیکئ.<br>–د نقشې له مخې د تختې پرمخ د لوست مهم ټکي ولیکئ.<br>–د اراضي جوړښت او شکلونه تشریح کړئ.<br>–د نوي لوست پوښتنې وکړئ.<br>–زده کوونکي په ګروپونو وویشئ دهغوی په ټولګي کې د ننه فعالیت جوت کړئ.<br>–د ډله ییز کار لارښوونه او څارنه وکړئ.<br>–د لوست دپای پوښتنې وکړئ.<br>–د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ.<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت تشریح کړئ. | –د لوست سرلیک ته ګوري.<br>–نوي لوست په پټه خوله لولي.<br>–د اراضي د جوړښت او شکلونو په هکله نظر ښکاره کوي.<br>–د لوست مهم ټکي یادداشت کوي.<br>–نقشې او تختې ته پاملرنه کوي، د نوي لوست شرحې ته غوږ نیسي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–زده کوونکي په ډلو کې برخه اخلې او د ټولګي دننه فعالیت تر سره کوي.<br>–زده کوونکي په ډلو کې فعاله او رغنده ګډون کوي.<br>–د نوي لوست د پای پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې وایي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**دسمو او ناسمو جملو توپیر وکړي.**

۱–د سمندر له سطحې د هېواد د خاورې ډېره لږه ارتفاع ۲۵۹ متره ده.

۲–ډېره لوړه څوکه یې د نو شاخ په نامه د هندوکش څوکه ده چې ۷۴۸۵ متره لوړوالی لرې.

۳–هغه اراضي چې له ۲۰۰۰ څخه تر ۶۰۰۰ لوړوالی لري، د افغانستان د ټولو غرونولړۍ ده.

۴–هغه اراضي چې په منځنۍ ارتفاع له ۵۰۰ څخه تر ۲۰۰۰ مترو لوړوالی کې پرته ده، څه ځانګړتیاوې لري؟

۵–هغه سیمې چې د سمندر له سطحې له ۳۰۰ مترو څخه تر ۵۰۰ مترو پورې لوړوالي لرې، په عمومي توګه دټیټو ځمکو تر سرلیک لاندې یا د لږو لوړو سیمو په نوم یاد شوي دي.

۱–د آمو لږه لوړه ساحه د افغانستان په شمال کې د آمو د سیند په غاړه د کوکچې د سیند تر وروستنۍ برخې پورې، د کندوز د سیند له غاړو څخه تر اشکاشم، د تاشقرغان حوزه، د بلخ آب له سیند ورستنۍ برخې څخه د مزارشریف تر جنوب، د شبرغان حوزه، دولت آباد او تر اندخوي غزیدلې ده.

۲–د هلمند حوزه د افغانستان په جنوب لویدیځ کې پرته ده، د هلمند دسیند ټیټه حوزه، خاشرود، فراه رود، ادرسکن او ګودزیره نومیږي چې په عمومي توګه دګودزیره دښته، د جهندم دښته، امیران دښته د چخانسور ټولبځمکې، زرنج، کنګ، د پوزک هامون او اطراف یې احتوا کوي او بري او صحرایي ځانګړتیا لري.

۳–د ننګرهار لږ ارتفاع ساحه نسبتاً د کابل دسیند غاړ وکې له جلال آباد څخه د لعل پورې سیمې نیسي د کواترنري د شګلنو تیږو او د نورو دورو د تیږو ډولونه جوړ شویدي، له دې کبله یې د اراضیو لنده بل رامنځته کړی او تر استوا لاندې اقلیم په درلودلو سره مدیترانه یې پیداوارو په کې پراختیا موندلې ده.

**۹-د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

د افغانستان د غرونو لړۍ د جوړښت، تشکیل او پیدابښت له نظره تقریباً د مرکزي اسیا د غرونوله لړۍ سره ورته والی لري، د افغانستان د غرونو لړۍ په تیره مرکزي برخې یې له خیتځ څخه د لویدیځ په لوري اوږدوالي لري او په پای کې د هریرود په حوزې پای ته رسیږي. د اوبو دوېش سرحد د هندوکش او بابا غر دشمال او جنوبي برخو ترمنځ ټاکنه کوي سربیره پر هغې د افغانستان د بیلو بیلو سیمو د غرونو لړۍ له دې جملې نه د هېواد شمالی سیمې په تیره بدخشان اوترکستان د جنوبي او جنوب ختیځ له سیمو یعنې کابل، ننگرهار، غزني او کندهار سره بیلوي او د مواصلاتو او ترانسپورټ له نظره یې زیاتې ستونزې رامنځ ته کړي دي، په داسې حال کې چې په اوسني وخت کې د سالنگ د تونل په کیندلو سره یې دغه ستونزې تر یوه حده لرې کړیدي.

## د څوارلسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | غرونه او د هغو اهمیت | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د غرونو له لړۍ او په ژوند کې به دهغې له اهمیت سره به بشپړه بلدتیا ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>–د غرونو په لړۍ او په ژوند کې د هغې اهمیت وپیژني.<br>–زده کوونکي به مینه پیدا کړي چې د غرونو لړۍ د انسانانو په ژوند کې څه رول لري.<br>–پوه به شي چې کومې مهمې زیرمې د غرونو په لړۍ کې شتون لري. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې پوښتنې اوځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې تړلي عکسونه، که امکان ولري جغرافیایي ویدوېي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر، سي ډي ګاني او انټرنټ | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي، لنډ ځوابه پوښتنې، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | |
| ٦– په ټولګي کې زده کړه ېز او د تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولګي بهر فعالیتونه، د تېر لوست ارزونه، د نوي لوست او زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځته کول:<br>هڅوونکي پوښتنه<br>ایا د غرونو د لړیو او په ژوند کې د هغو د ارزښت په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پټې خولې مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–په ژوند کې د غرونو د لړیو د اهمیت په هکله پوښتنې وکړئ.<br>–د نقشې له مخې په تختې د غرونو د لړۍ مهم ټکي ولیکئ او په ژوند کې یې اهمیت شرحه کړئ.<br>–د نوي لوست په باره کې پوښتنې وکړئ<br>–زده کوونکي په ډلو وویشئ د هغو فعالیت مشخص کړئ.<br>–د ډله ییز کار لارښوونه او څارنه وکړئ.<br>–د لوست د پای پوښتنې وکړئ<br>–د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د غرونو د لړۍ او د هغو د اهمیت په باره نظرڅرګندوي<br>–د لوست مهم ټکي لیکي<br>–نقشې او تختې ته پاملرنه کوي او د نوي لوست تشریح ته غوږ نیسئ.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وایي.<br>–ز ده کوونکي پر ډلو ویشل کیږي او په ټولګي کې د ننه فعالیت کې برخه اخلي.<br>–د ښوونکي په لارښوونه د ګروپي کار پایله د خپل استازي پواسطه نورو زده کوونکو ته وړاندي کوي.<br>–د نوي لوست د پا پوښتنو ته ځواب وایي.<br>–خپلي ستونزې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ټولګي بهر فعالیت لیکئ | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن د پوښتنو ځواب:**

**د جملو خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک شوي دي.**

۱–دافغانستان $\frac{۱}{۳}$ **برخه** دغرونولړۍ او لوړې ارتفاعګانې دي

۲–زموږ د هېواد غرونه او لوړې برخې **د قراقرم** او د کوچني پامیر له شمال ختیځ څخه پیل شویدي.

۳–د افغانستان د غرونو لړۍ یوازې طبیعي عامل دی چې د دغې ساحې **دښتې حالت یې**له منځه وړی دی.

۴–د افغانستان ځیني غرونه په **ځنګلونو** پوښلي دي

۵–د افغانستان په زیاترو **غرونو کې** دایمي **واورې** شته.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د افغانستان د غرونو لړۍ د مرکزي اسیا د غرونو له لړۍ سره د جوړښت له طرز او پیدایښت سره لږ تر لږه یوشان دی. د افغانستان د غرونولړۍ په تیره مرکزي برخې یې چې له ختیځ څخه لویدیځ پلو ته امتداد لري او په پای کې د هریرود په حوزې کې پای ته رسیږي، د شمالي سیمو، د هندوکش او بابا غره ترمنځ د اوبو دوېش سرحد ټاکي او سر بیره پر دې مختلفې سیمې یعنې د افغانستان شمال په تیره د ترکستان او بدخشان شاوخوا د افغانستان د جنوب او ختیځ جنوب سیمې یعني کابل، ننګرهار، غزني او کندهار بیل کړیدي، د مواصلاتوله درکه یې ستونزې رامنځ ته کړیدي.

په داسې حال کې چې دغه ستونزې نن د سالنګ د تونل په کیندلو او له ښو نقلیه وسایطوڅخه په کار اخیستلو تریوې اندازې لرې شویدي.

## د پنځلسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د هندوکش د غرونو لړۍ | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د هندوکش له لړۍ سره به بلدشي<br>ځانګړې موخې:<br>–د هندوکش دلړۍ په باره کې به معلومات پیدا کړي.<br>–په نقشه کې به د هندوکش د لړۍ موقعیت رسم کړي.<br>–د ختیځ هندوکش او لویدیځ هندوکش د لړیو سره به مینه پیدا کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې تړلې انځورونه، د هندوکش لړۍ، که امکان ولري د کمپیوټر، له سي ډي ګانو انټرنېټ کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي، لنډ ځوابه پوښتنې، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار او د ښوونکي د یادداشت کتابچه. | |
| ٦– په ټولګي کې دزده کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولګي بهر فعالیتونولیدل، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br>هڅوونکي پوښتنه<br>– ایا د هندوکش دلړۍ په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د هندوکش د لړۍ په اړه پوښتنېوکړئ.<br>–پر تختې باندې د لوست مهمې برخې ولیکئ او په نقشه کې یې شرحه کړئ.<br>–د هندوکش د لړۍ نوي لوست په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–زده کوونکي په ډلو وویشئ په ټولګي کې دننه فعالیت ورته مشخص کړئ.<br>–د ډله ییز کار لارښوونه او څارنه وکړئ.<br>–د لوست د پای پوښتنې طرحه کړئ<br>–د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ.<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست د سرلیک په غور لوستل او په کتاب کې پیدا کول.<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د هندوکش د لړۍ په باره کې نظرڅرګند وي.<br>–د لوست مهم ټکي لیکي.<br>–نقشې او تختې ته پاملرنه کوي، د نوي لوست شرحې ته غوږ نیسي.<br>–د نوي لوست پوښتنوته ځواب ورکوي.<br>–زده کوونکي په ډلو کې ونډه اخلي او د ټولګي د ننه فعالیت ترسره کوي او د ښوونکي لارښوونې عملي کوي.<br>–د نوي لوست د پای پوښتنوته ځواب وایي<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت اخلي. | ۳۵<br>دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–د افعانستان د هندوکش غرونو لړۍ په شمال او جنوب یعنې د دوو اوبو لرونکو سیمو یعنې د کابل د اوبو حوزه د امو له اوبو څخه بیلوي.

۲–ختیځ هندوکش د زیباک له درې د خاواک تر کوتله د ۳٦۰ کیلو مترو په واټن امتداد موندلی، زموږ د هېواد له لویو غرنیو لړیو څخه شمیرل کیږي

۳–یخچالي مرینونه د کران او منجان له درې څخه لاندنۍ ناحیه انجمن، پوشال او خاواک د ائتکالي فعالیت له اغیزې په زیاته اندازه رامنځته شوي دي.

۴–د ختیځ هندوکش ډیره لوړه څوکه له افغاني خاورې بهر په چترال کې د تراجمیر په نامه پرته ده او د سمندر له سطحې څخه یې لوړوالی ۷۷۵۰ متروته رسیږي.

۵–د هېواد د شمال او جنوب سترې لویې لارې دلویدیځ هندوکش د سالنګ له تونل او ښکاري دره له همدې ساحې څخه تیریږي.

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د واخان په جنوب لويديځ لوري د غرونو لړۍ يا لوړې څوکې پرتې دي چې د هندوکش يا هندي ققفاز په نامه ياديږي. د غرونو دغه لړۍ له شمال ختيځ څخه د لويديځ او جنوب لويديځ پلوته امتداد لري او دغرونو هغه لړۍ چې په لويديځ کې پرتې دي، د افغانستان د شمال او جنوب ترمنځ يې لوی ديوال رامنځته کړيدی. د غرونو دغه لړۍ د ختيځ له لوري د افغانستان خاورې د قراقرم د غرونو له لړۍ سره يوځای شوي دي او د بروغل کوتل د ۳۸۰۴ مترو په لوړوالي د دغو دوو لړيو بيلوونکی حد جوړوي.

د جيومار فولوجستانو له نتيجې څخه داسې روښانه کيږي چې د هندوکش د غرونولړۍ د مرکزي اسيا دلړيو په شان ځوانې دي او د څرگنديدو او ودې په حالت کې دي، د غرونو پيدا کولو حرکتونه چې د زلزلو د رامنځته کولو سبب کيږي، د دې موضوع حقيقت ثابتوي، د غرونو د دغه لړۍ اساس او بنسټ له پلتونيک او ولگانيک نار په ډوله تيږو څخه جوړ شوي او پورتنۍ برخې يې د رسوبي تيږو پنډو طبقو نيولې ده چې په ځينو برخو کې يې تيږې ښکاره شويدي، د هندوکش لړۍ بې شميره درې او وادي گانې لري چې د ځينو د جوړښت اساس د ائتکال د عمل په واسطه دی.

# د شپاړسم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د بابا غر | |
| ۲–دزده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدريس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د بابا له غره سره به بشپړه بلدتيا ومومي.<br>ځانگړې موخې:<br>–د بابا د غره په باره کې به معلومات حاصل کړي.<br>–د بابا غره د موقعيت معلومات به ترلاسه کړي.<br>–په نقشه کې به د بابا غره کوتلونه په نښه کړي.<br>–د سپين غره په باره کې به معلومات ترلاسه کړي.<br>–د سپين غر په اقتصادي ارزښت به وپوهيږي. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرگندونې او ډله ييز کار، خبرې پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، د ښوونکي لارښود کتاب، دبابا غره او سپين غره نقشې، د امکان په صورت کې دکمپيوټر له سي ډي گانو او انټرنېټ څخه کار اخيستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعاليت ارزونه، عملي کار او دښوونکي د يادداشت کتابچه. | |
| ۶–په ټولگي کې دزده کړې او تدريس لومړنې فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ، دټولگي تنظيمول، حاضرۍ اخيستل، له ټولگي بهر فعاليت ليدل، د تېر لوست ارزونه، د نوي اوزاړه لوست ترمنځ اړيکه رامنځته کول. | وخت په دقيقو |
| | هڅوونکي پوښتنه<br>–ايا دبابا غره او سپين غره په باره کې معلومات لرئ؟ | ۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړ ې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د نوي لوست د مطالعې سپارښته وکړئ.<br>–د بابا د غره او سپین غره په اړه پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د نوي لوست مهم ټکي ولیکئ.<br>–د نقشې له مخې پر تختې مهم ټکي ولیکئ، د بابا غر او سپین غر نوی لوست توضیح کړئ.<br>–د نوي لوست په اړه پوښتنې وکړئ<br>–زده کوونکي په ډلو وویشئ او د هرې ډلې فعالیت و ټاکئ.<br>–دلوست دپای پوښتنې طرحه کړئ.<br>–د زده کوونکو پوښتنې اوستونزې حل کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د بابا د غره او سپین غر ه په اړه نظر څرګندوي<br>–د لوست مهم ټکي یادداشت کوي.<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او د نوي لوست د تشریح په اړه د ښوونکي څرګندونې په غور اوري<br>–پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>–په ډلو او د ټولګي د ننه فعالیت کې برخه اخلي.<br>–د نوي لوست د پای پوښتنو ته ځواب وایي<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ټولګي بهر فعالیت یادداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتو ته ځواب وایي:**

**سم ځواب نښه کړئ**

۱–(د) سم دی

۲–(ب) سم دی

۳–(د) سم دی.

۴–(ج) سم دی

**۹– د ښوونکي له لپاره اضافي معلومات**

**د بابا غر:**

د غرونو دغه لړۍ تقریبا دافغانستان په مرکزي برخه کې پرته ده او دغرونو دغه لړۍ هم د هندوکش، فیروز کوه او د ترکستان د تیربند د غرونو په شان له ختیځ څخه دلویدیځ په لور پرته ده، هغه څانګې چې له دغې لړۍ بیلې شویدي په مختلفو خواوو غځېدلې چې د څانګو یوه برخه یې د شمال او شمال لویدیځ په لور او بله برخه یې د جنوب او جنوب لویدیځ په لور پرته ده. دغه څانګې له شمال څخه جنوب ته اوله جنوبه شمال ته تګ راتګ له ستونزو سره مخامخ کړیدی د بابا د غره زیاتې لوړې برخې په کال کې له شپږمیاشتو زیاته موده په واورو پوښلې وي، تګ راتګ په کې نه کیږي، د دغې لړۍ د لوړوالي منځنۍ اندازه (۴۰۹۰) مترو ته رسیږي او ډیره لوړه څوکه یې د شاه فولادي په نوم یادیږي چې د سمندر له سطحې څخه (۵۱۴۰)متره لوړوالی لري.

سپین غر د افغانستان د ختیځ په لور پروت دی، ( ۱۵۰ ) کیلو متره اوږدوالی لري، دغه لړۍ د پېښور له (۴۸) کیلومترۍ څخه پیل کیږي، د لویدیځ په لورې امتداد لري، ښایي چې د سپین غره ښاخونه زیات وي چې یوه برخه یې د کابل تر جنوب ختیځ پورې رسیږي اوله هغه ځایه یې نورې څانګې د جنوب په لور دوام لري.

# د اووه لسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | دسلیمان غر | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخه:<br>–د سلیمان غربه په بشپړه ټوګه وپیژني<br>ځانګړی موخې:<br>–دسلیمان د غره په اړوند به پشپړ معلومات پیداکړي.<br>–د سلیمان د غره موقعیت به په نقشه کې وښیي.<br>–دترکستان دتیربند په اړوند به خبرتیا او مینه پیدا کړي<br>–په دې به پوه شي چې په پسرلي او اوړي کې د ترکستان د تیر بند شمالي او جنوبي برخې څنګه دي، نوروته به یې روښانه کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، دسلیمان د غره نقشې، د امکان په صورت کې د کمپیوټر له سي ډي ګانو او انټرنت څخه کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ښوونکي د یادداشت کتابچه، په ټولګي کې دننه فعالیت ارزونه او عملي کار | |
| ٦– په ټولګي کې زده کړه ییز او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، دټولګي تنظیمول، له ټولګي بهر فعالیت تامینول، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br>هڅوونکي پوښتنه<br>– ایا د سلیمان غره په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت پهدقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده کوونکو د زده کړ ې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ<br>–دسليمان د غره او د ترکستان د تيربند په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د تختې پرمخ د لوست دمهمو ټکو د ليکلو سپارښتنه وکړئ.<br>–دنقشې له مخې پر تختې مهم ټکي وليکئ.<br>–دسليمان د غره او د ترکستان د تيربند نوي لوست توضيح کړئ.<br>–د نوي لوست پوښتنې وکړئ<br>–زده کوونکي په ډلوویشئ<br>–د ټولګي د ننه فعاليت وګورئ<br>–د ډله ييز کار څارنه وکړئ<br>–د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–دلوست د پای پوښتنې حل او دنوي لوست ارزونه وکړئ.<br>–د ټولګي نه بهر فعاليت توضيح کړئ | –د نوي لوست سرليک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>– د سليمان د غره او د ترکستان دتيربند په باره کې نظر څرګندوي<br>–د درس مهم ټکي يادداشت کوي.<br>–نقشې او پر تختې باندې ليکلو مهمو ټکو ته پاملرنه کوي، نوي لوست ته په غور غوږ نيسي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وايي.<br>–په ډ لو او په ټولګي کې د ننه فعاليت کې فعاله ونډه اخلي.<br>د خپلو ستونزو په هکله پوښتنې کوي.<br>–د ډله ييز کار پايله د خپلو استازو په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي په مخکې نورو ته وړاندې کوي.<br>–د لوست د پای پوښتنوته ځواب ورکوي.<br>–له ټولګي بهر فعاليت يادداشت کوي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب وايي:**

۱–د افغانستان د غرو لړۍ په مجموع کې په جيولوجيکي ( ترشيري) دريمې دورې پورې اړوند دي.

۲–د سليمان د غره د لړۍ لوړه څوکه د سليمان د تخت په نامه ياده شوي او دسمندر له سطحې څخه (۳۲۰۰) متره لوړوالی لري.

۳–نور ښاخونه چې دسليمان د غره د لړۍ په دوام زموږ د هېواد محلي اوسيمه ييز غرونه جوړوي، په پکتيا، پکتيکا او بلوچستان کې پراختيا موندلې او د سند حوزه د افغانستان له جنوبي ولايتونو څخه بيلوي، خو د دغې سيمې د اوسيدونکو کلتوري ځانګړتياوې يو شان دي او ګډ فرهنګ او کلتور لري او هغه سرحدي کربنه چې د غرونو له دغې لړۍ څخه تيره شوې واحدې قبيلې له يو بل څخه بيلوي.

۴–د ترکستان تيربند د افغانستان په شمال لويديځ کې موقعيت لري.

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د سليمان د غرو دلړۍ پروت لوری د سپين غره او ختيځ تور غره له لړۍ سره اختلاف لري. د غرونو دغه لړۍ د افغانستان د پولو په جنوب کې پرته ده او ۶۰۰ کيلو متره اوږدوالی لري. د لويديځ سليمان داغ او ختيځ سليمان داغ په برخو ويشل کيږي. د سليمان د غره په جوړښت کې د تکنونيک عمليه رول لري او په دغه توگه يې زياتې ماتې په دغه لړۍ کې رامنځته کړې دي، د غرونو د لړۍ په پورتنيو برخو کې اهکي تيږې څرگندوي چې د جوړښت عمل يې د طبقات الارضي په دويمه او دريمه پيړۍ کې رامنځته شويدی. د سليمان د غره دلړۍ ختيځه برخه د افغانستان له پولو بهر پرته ده او د وزيرستان خاوره جوړ وي. جنوبي څانگې يې د سند حوزې په بلوچستان کې افغانستان له جنوبي حوزې بيلوي، د سليمان د غرو لړۍ، ختيځو غرو لړۍ، سپين غره د موسمي لنده بل درسيدلو له امله زيات مرطوب دی او ستنې ته ورته پاڼې لرونکې ونې، څيړۍ زيړه ونې او نورې ونې لري.

# د اتلسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | ب–اوار ځایونه، د ښتې او شګلنې سیمې | |
| ۲–دزده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>–عمومي موخې:<br>–له اوارو ځایونو، دښتو اوشګلنو سیمو سره به بشپړه بلدتیا پیدا کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–د اوارو ځایونو – دښتو او شګلنو سیمو په باره کې به معلومات پیدا کړي.<br>–د اوارو ځایونو – دښتو او شګلنو سیمو موقعیت به پهنقشه کې وښيې<br>–د غرونولړۍ، لږ لوړ ځایونه او اوارې سیمې به وپیژني او نوروته به یې معلومات وړاندې کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | توضیحي، خبرې، ډله ییزکار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، طبیعي نقشه که امکان ولري، د کمپیوټر له سي ډي ګانو او انټرنټ څخه کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې) په ټولګي کې د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار او د ښوونکي د یادداشت کتابچه. | |
| ۶–په ټولګي کې زده کړه ییز او د تدریس فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، دټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخستل، له ټولګي څخه بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، له زاړه لوست سره د نوي لوست ترمنځ اړیکه رامنځته کول. | وخت په دقیقو |
| | –هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا د اوارو ځایونو، دښتو او شګلنو سیمو په باره کې معلومات لرئ؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د اوارو ځایونو، دښتو او شگلنو سیمو په اړوند پوښتنې وکړئ.<br>–دلوست مهم ټکي ولیکئ.<br>–د نقشې له مخې دې مهم ټکي ولیکئ او پر تختې دې اوار ځایونه، دښتې او شگلنې سیمې توضیح کړئ<br>–د نوي لوست د مهمو ټکو په باره کې پوښتنې وکړئ.<br>–زده کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولگي کې د ننه د هغو فعالیت مشخص کړئ.<br>–د ډله ییز کار څارنه وکړئ<br>–د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست د پای پوښتنې طرحه او نوي لوست ارزیابي کړي<br>–له ټولگي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ته گوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د اوارو سیمو دښتو او شگلنو سیمو په اړوند نظر څرگندوي.<br>–د لوست مهم ټکي لیکي.<br>–نقشې او په تخته لیکل شوی مهمو ټکوته پاملرنه کوي.<br>–د نوي لوست شرحې ته غوږ نیسي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وایي.<br>–په ډلو کې دټولگي د ننه فعالیت کې فعاله برخه اخلي ډله ییزکارکې د ښوونکي له لارښونې سره سم برخه اخلي او پایله یې د خپل استازي په واسطه د ټولگي مخکې وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د لوست د پای پوښتنو ته ځواب وایي<br>–له ټولگي څخه بهر فعالیت یادداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتو ته ځواب ووایې:**

۱–د افغانستان هېواد د طبیعي عوارضو او توپوگرافۍ له مخې په درو برخو ویشل شویده

۲–د افغانستان په شمال کې د شیر ماهي شگلنې دښتې د بلخ او امو دریاب ترمنځ پرتې دي.

۳–د هلمند د حوزې دښتې صحرایي اقلیمیځانگړتیا لري.

۴–د ننگرهار د حوزې دښتې د ثمر خیلو او غازي اباد د شگلنوځمکو او په لغمان کې د گمبیري او سرخکانو له دښتو څخه عبارت دي.

۵–د افغانستان د جنوب لویدیځو شگلنې ساحې چې د گودزرې د جهیل شاوخوا سیمې، د جهندم دښته، صدیقی ریگستان، د امیران دښته او د چخانسور ټولې ځمکې په کې شاملې دي چې پراخه شگلنې سیمې جوړې کړې دي.

**۹– د ښوونکی له پاره اضافي معلومات**

په هغو ځایونو کې چې د غرونو لړۍ شتون و نه لري، او به او داوبو سرچینې نه لیدل کیږي او اوربښت پکې ډیر لږ وي صحرایي او دښتي ساحې رامنځ ته کوي. د افغانستان په شمال کې د شیرماهي دښته او شگلنه دښتې د بلخ او امو دریاب ترمنځ موقعیت لري، دهلمند په حوزه کې اواره اراضي د گودزری د جهیل شاوخوا، د جهندم دښته، صدیقي ریگستان او د امیران دښته پرته ده. په ننگرهار کې د ثمر خیلو او غازي اباد شگلنې سیمې، په لغمان کې د گمبیري او د سرخکانو دښتې شته. دغه راز په لوگر کې د سقاوې دښته او په کاپیسا کې ریگ روان د یادولو وړ دي.

# د نولسم لوست د تدریس لاربښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | ژوي | |
| ۲-دزده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-له ژویو سره به بشپړه بلدتیا ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>-د افغانستان د ژویو په اړه به معلومات حاصل کړي.<br>-د اهلي او وحشي ژویو د ارزښت په اړه به معلومات پیدا کړي.<br>-د ژویو د ژوند ځای به د اقلیمي سیمو له نظره وپیژني<br>-د ژویو د اقتصادي ارزښت په اړه به معلومات پیدا کړي | |
| ۳-د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لاربښود کتاب، که امکان ولري د کمپیوتر له سي ډي ګانو او انټرنټ څخه به کار واخلي | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، په ټولګي کې د فعالیت ارزونه او عملي کار. | |
| ٦- په ټولګي کې زده کړه ییز او د تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ اخیستل، له ټولګي څخه بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، د زاړه او نوي لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br>- هڅوونکي پوښتنه:<br>- ایا د افغانستان د ژویو په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښته وکړئ.<br>–د ژویو په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–د تختې په سر د لوست د مهمو ټکو لیکلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د انځورونو له مخه پر تختې باندې مهم ټکي ولیکئ او نوی لوست تشریح کړئ.<br>–له نوي لوست څخه پوښتنې وکړئ<br>–زده کوونکي په ډلو وویشئ د ټولګي د ننه د هغو فعالیت مشخص کړئ.<br>– د ډله ییز کار څارنه وکړئ<br>–د زده کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک گوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د لوست په اړه نظر څرګندوي<br>–د نوي لوست مهم او غوره ټکي لیکي.<br>–د انځورونو له مخې د تختې مهم ټکي (ژوي) توضیح کوي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وایي.<br>–په ډلو او د ټولګي د ننه فعالیت کې ونډه اخلي، د ډله ییز کار نتیجه د استازو په واسطه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>–د ټولګي بهر فعالیت یادداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتو ته ځواب وایي:**

**سم ځواب په نښه کړئ**

**۱–(۱) شمیره سمه ده**

لنډ ځواب ورکړئ

**۲–د هندوکش د غرونو لړۍ د نیمه قطبي او نیمه استوایي سیمو د څارویو د جلا کولویوه پوله ګڼل کیږي.**

**۳–زمونږ په هیواد کې له ۴۴۱ څخه زیات ډولونه الوتونکي لیدل کیږي چې زیات شمیریې د اوبو او مهاجر الوتکونکي دي.**

**۴–هغه مرغان چې په لوړو ځایونو کې څاله لري، د هامون له جهیلونو او د غزني د ولاړ و اوبو له مرغانو سره توپیر لري. د ساري په توګه:پکه باښه، ګربت، ټپوس او کونګ په لوړو ځایونو کې ژوند کوي.**

**۵–صحرایي ژوي له ډول ډول موږ کانو، ګیدړو، کفتار، سور لنډې، خځنده ګانو او حشراتو څخه عبارت دي.**

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

**په افغانستان کې ډول ډول ژوي، مدیترانې او تر استوا لاندې ژویو ته ورته ژوي شته. له دې کبله زموږ د هېواد نښتې ساحه د ژویو ځای د قطب او تر استوا لاندې سیمو ترمنځ سیمه جوړوي چې د هېواد په اقتصاد او د توریزم په جلبولو کې مهم رول لري، دغه هېواد د هغو د ژوند له پاره مناسب ځای دي چې کم پیداکیږي، لکه مار خوړونکې هوسۍ، مارکوپولو هوسۍ، د ختن هوسۍ، اورین پړانګ، سپین کلنګ او ډول ډول تې لرونکي او نور جوړ وي.**

**لکه: پخوا یږه دنورستان په ځنګلونو کې اوسیده، د امو دریاب په غاړه کې ببر او پړانګ په اوچتو او د هندوکش په لوړو سیمو کې یې شتون در لود، په کوهستانونوکې لیوه ژوند کاوه، سره ګیدړه چې ځانګړی طبي ارزښت لري، په مرکزي غرنیوبرخو کې پیدا شویده. د شمال په لوس ستپ خاوره کې شیشګي ژوند کوي او له ۴۴۱ زیات مرغان چې زیات شمیریې اوبیز او مهاجر دي په افغانستان کې لیدل شوی دي.**

# د شلم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | ځنګلونه | |
| ۲-زده کړيېز (پوهنيزې، مهارتي، او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدريس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-له ځنګلونو سره به بشپړه بلدتيا ومومي<br>ځانګړي موخې:<br>-د افغانستان له ډول ډول ځنګلونو څخه به خبرتيا تر لاسه کړي.<br>-د ځنګلونو اقتصادي ګټې به وپيژني.<br>-په دې به و پوهيږي چې ځنګلونه په څو ډولو ويشل شويدي<br>-د ځنګلونو ارزښت د ژوند د چاپيريال په ساتنه به پوه او نوروته به يې معلومات ورکړای شي. | |
| ۳-د تدريس ميتود | څرګندونې، خبرې، ډله ييز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدريس اړين توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشير، د ښوونکي لارښود کتاب، د ځنګلونو انځورونه که امکان ولري د کمپيوتر سي ډي ګاني او انټرنټ کارول | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، په ټولګي کې د ننه فعاليت ارزونې او عملي کار | |
| ۶- په ټولګي کې زده کړيېز او د تدريس لومړنې فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ، دټولګي تنظيمول، حاضرۍ اخيستل، له ټولګي بهر فعاليت ليدل د تېر لوست ارزونه، له زاړه لوست سره د نوي لوست د اړيکې رامنځته کول<br><br>- هڅوونکي پوښتنه<br>- ايا د ځنګلونو له ډولونو او قسمونو سره بلدتيا لرئ؟ | وخت په دقيقو<br><br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیت | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښته وکړئ.<br>–(د ځنګلونو) په اړوند پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست مهم ټکي ولیکئ.<br>–د ځنګلونو د نوي لوست د انځورونو له مخې لیکل شوي مهم ټکي توضیح کړئ.<br>–له زده کوونکو څخه د نوي لوست پوښتنې وکړئ<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز کار مشخص کړئ<br>–د ډله ییز کار څارنه وکړئ<br>–د زده کوونکو پوښتنو او ستونزو ته ځوابونه ورکړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د نوي لوست (ځنکلونو) په اړه نظر څرګندوي<br>–د لوست مهم او عمده ټکي یادداشت کوي.<br>–د انځورونو او هغو مهمو ټکو چې په تخته لیکل شوي په اړوند توضیح کوي.<br>–نوی لوست (ځنګلونه)په غور وایي<br>–د ټولګي د ننه په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي او د خپلې ډلې نظریې په خپل استازي د ټولګي په مخکې لولي<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت اخلي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–د ستنې په شان پاڼې لرونکي صنعتي ځنګلونه چې پاڼې یې همیشه شنې دي، د ۲۰۰۰ –او ۳۰۰۰ متره لوړتیا ترمنځ وده او نمو کوي، د هېواد په جنوبي او ختیځو سیمو کې شتون لري.

۲–د دولت په وسیله د ځنګلونو حفاظت او ساتنه او په عنعنوي توګه دهغه ځای د خلکو په وسیله رامنځته کیږي

۳–ځنګلونه زیاتې اقتصادي ګټې لري، د ساري په توګه د ودانیو د جوړولو، تودوخې، سکرو او مغز لرونکو میوو، د لرګیو پلورل چې د ملي اقتصاد په پراختیا کې مهم رول لري

خالي ځایونه ډک کړی

۱–زموږ د هېواد د ځنګلونو زیاتې **برخې د امنیت** د تامین له امله او په تیره دونو ساحې خالي کول، چې دوا ټونو او اوسیدلو کورونو ته نژدې وې له منځه وړی دي.

۲–د ستنې په شان پاڼې لرونکي صنعتي ځنکلونه د ۲۰۰۰ –او ۳۰۰۰ مترو ترمنځ لوړوالي کې وده او نموکوي.

۳–بوټي لرونکي او تیت شوي ځنګلونه د هېواد په مرکزي او جنوب لویدیځو برخو کې واقع دي.

**۹– د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

ځنګلونه دافغانستان له طبیعي مهمو سرچینو څخه دي، د ټولنې او هېواد په اقتصادي بنسټ او د اړتیا وو په لرې کولو کې اغیزمن رول لري. شواهد ښیي چې د هېواد د جنوب غربی سیمې د ستنې په شان پاڼو لرونکو او پلنو پاڼوګیو ځنګلونو پوښلي دي. د هېواد د جنوب ختیځ غرونه، لکه: دسلیمان غر، سپین غر، د چترال برخې، هندوکش او پامیر دنورستان په ګډون له او چتو ارتفاګانو څخه د هغو ترلمنو پورې له صنعتي او له ارزښت لرونکي صنعتي ځنګلونو او دڅېړۍ او ستنې په شان پاڼو لرونکوونو پوښلي دي او هم د هېواد شمال لویدیځې سیمې او غونډۍ دښتي ځنګلونو او نورو ډول ډول ونو پوښلي دي، په افغانستان کې د ځنګلونو حفاظت او ساتنه د دولت په واسطه په عنعنوي توګه د هغه ځای د خلکو په واسطه کیږي، زموږ په هېواد کې د استوګنې د چاپیریال له عمده ړنګولو او د جګړې په وخت کې د ځنګلونو له منځه تلل او د طبیعي سرچینو ستره ضایعه ګڼل کیږي.

# د یوویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونه شرحه | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د ځمکې پرخ د بوټو فرش | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د بوټو له فرش سره به بشپړه بلدتیا پیدا کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–د بوټو د فرش په ارزښت به پوه او نوروته به یې معلومات وړاندې کړي.<br>–د اقلیمي سیمې ټول بوټي به وپیژني<br>–د بوټو د فرش په ګټو به پوه شي<br>–له و نو او بوټو څخه د کار اخیستلو له طریقببه خبرتیا حاصله او په کتابچو کې به یې ولیکي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود، د بوټو فرش انځورونه، که امکان ولري د کمپیوټر له سي ډیګانو او انټرنټ څخهکار اخیستل | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ٦– په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړني فعالیتونه | سلام او روغبړ، دټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولګي بهر فعالیت کتل، د تېر لوست ارزونه، له زاړه لوست سره د نوي لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br>– هڅوونکي پوښتنه:<br>– ایا له اقلیمي مختلفو سیمو څخه د بوټو د فرش خبرتیا لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د بوټو د فرش په اړوند پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست مهم او عمده ټکیولیکئ.<br>–د انځورونو او په تخته د لیکل شوو بوټو فرش توضیح کړئ<br>–د نوي لوست په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئد ټولګې د ننه د دوی فعالیت مشخص کړئ.<br>–د ډله ییز کار څارنه وکړئ.<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنېحل کړئ او د لوست ارزونه وکړئ<br>–د لوست لنډیز ووایي<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د بوټو د فرش اړوند نظر څرګندوي<br>–د لوست مهم او عمده ټکي یادداشت کوي.<br>–د بوټو د فرش توضیح ته غوږ نیسي<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–په ټولګي کې د ننه د ډلو په فعالیت کې فعاله ونډه اخلي د ښوونکي لارښوونې تر سره کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د لوست لنډیزته غوږ نیسي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

**خالي ځایونه په مناسبو جملو ډک کړئ**

۱–افغانستان یو غرنی هېواد دی

۲–په افغانستان کې د تودوخېد درجې، لنده بل، اورښت او د ځمکې د جوړښت له نظره ډول ډول بوټیلیدلی شو.

سم او ناسم ځوابونه

۱–( ص)

۲–( غ )

۳–(غ )

۴–(غ)

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

افغانستان یو غرنی هېواد دی، چې د تودوخې د درجې، لنده بل، اورښت او د ځمکې دجوړښت له نظره ډول ډول بوټې پکې لیدلی شو. لکه چې زموږ د هېواد شمالي برخو کې ډول ډول نباتات روزل کیږي، سربیره په دې په افغانستان کې نور بوټي هم شته. زېره د وحشي بوټو له ډلې څخه ده چې له هېواد څخه بهرته صادریږي. د بدخشان درې د نرۍ ډېره ښه زیره تولیدوي او دد غه بوټي تخم زرونه کاله پخوا ختیځو او لویدیځو هېوادونو ته د وریښمولة لارې صادریده.

## د دوه ویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | په طبيعت کې د اوبو گرځيدل (سايکل يې) | |
| ۲-د زده‌کړې (پوهنيزې مهارتي، او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدريس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-په طبيعت کې به د اوبو گرځيدل( سايکل يې) وپيژني<br>ځانگړې موخې:<br>-په طبيعت کې داوبو له گرځيدلو (د اوبو سايکل) سره به بلد شي او نوروته به يې معلومات ورکړای شي.<br>-د هايدرو سايکل په عمليې به و پوهيږي.<br>-د اوبو د بد ليدلو حالت په بړاس او کنگل کيدلبه وپيژني | |
| ۳-د تدريس ميتود | څرگندونې او ډله ييز کار، خبرې پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدريس اړين توکي | د لوست کتاب، تخته، د ښوونکي لارښود کتاب، په طبيعت کې داوبو له گرځيدلو (د اوبو سايکل) که امکان ولري، د کمپيوټر له سي ډي گانو او انټرنټکار واخلي. | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶- په ټولگي کې د زده‌کړې او تدريس لومړني فعاليتونه | سلام، روغبړ، دټولگي تنظيمول، حاضرۍ اخيستل، له ټولگيو بهر فعاليت ليدل، د تېر لوست ارزونه، له زاړه سره د نوي لوست اړيکه رامنځ ته کول.<br>- هڅوونکي پوښتنه:<br>- ايا په طبيعت کې د اوبو د گرځيدلو (د اوبو سايکل) په اړه څه معلومات لرئ؟ | وختپه دقيقو<br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–په طبیعت کې داوبو ګرځیدلو (داوبو سایکل) په اړه پوښتنې وګړئ.<br>–پر تختې دلوستمهم ټکیولیکئ.<br>–د تختېله مخې د غوره ټکو پوښتنې وکړئ.<br>–د انځورونو له مخې د اوبو سایکل توضیح کړئ.<br>د زده‌کوونکو ستوتزې او پوښتنې حلکړئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او فعالیت یې ځانګړی کړئ<br>–د ډله ییز کار څارنه وکړئ<br>–له زده‌کوونکو د ارزونې پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–په طبیعت کې د اوبو د ګرځیدلو( د اوبو سایکل) په باره کې نظر څرګندوي<br>–دلوست مهم ټکي یادداشت کوي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وایي.<br>–په ټولګي کې د ننه خپلې ستونزې هواروي او پوښتنېکوي.<br>–د ټولګي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي او د خپلو ډلو پایله د خپل استازې په واسطه د ټولګي په مخکې د ښوونکي په لارښوونه وړاندې کوي.<br>–د ارزونو پوښتنو ته ځوابونه وایي<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت اخلي | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتو ته ځواب:**

۱–د ځمکې په کره کې موجودې اوبه تل په بدلون کې دي چې راز راز پړاوونه او پیچلتیا په کې طی کوي، د بېلګې په ډول د مایع او بلن حالت په بړاس او وریځو بدلیږي، او ورښتونه منځته راوړی، تر هغې چې په لومړي حالت بدلې شي، د اوبو دغه سایکل تهد اوبو دوراني سایکل ویل کیږي.

۲–د اوبو ګرځیدل د ځمکې د کرېپر اصلي برخو یعنې اتموسفیر، هایدروسفیر او بایوسفیر ویشل کیږي.

صحیح اوغلطې پوښتنې

۱–(ص)

۲–( غ )

۳–(ص)

۴–(غ)

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

سایکل یا د اوبو دوران د سمندر له بړاس څخه پیل کیږي او به له سمندرونو او د اوبو له سرچینو څخه بړاس کیږي، فضاته پورته کیږي او د باد په وسیله په فضا کې حرکت کوي، د هوا د کتلو د حرکت واسطه، د اوبو بړاس د مترولوجي شرایطو لاندې تراکم کوي، وریځې رامنځ ته کوي او داشباع د عملیې په واسطه بیرته تکاثف(نژدې کیدل) کوي، په باران بدلیږي، د باران او به چې پر ځمکه پریوزي، په مختلفو بڼو جریان پیدا کوي، یوه برخه یې په خاورې کې جذبیږي، بله برخه یې سمد لاسه د لمر د لګیدلو په اغیزې د خاورې د مخې  د بړاس او ترانسپایریشن، په بڼه د بوټي له سطحې فضا ته پورته کیږي، د باران یوه برخه د ځمکې پرمخ جاري کیږي، د سیند او یا ویالې په شکل حرکت کوي او یوه برخه یې په ځمکه کې جذبیږي، تر دې چې ترځمکې لاندې او به جوړ وي.

## درویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | د اوبو ارزښت په ژوندانه، د انرژۍ په تولید او کرنیز اقتصاد کې | |
| ۲-د زده کړې(پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-له زراعتي اقتصاد، د انرژۍ په تولید او ژوند کې به د اوبو له اهمیت سره به بشپړه توګه بلدتیا پیدا کړي<br>ځانګړې موخې:<br>-د زراعتي اقتصاد، انرژۍ د تولید او ژوند کې به د اوبو د اهمیت په اړه معلومات پیدا کړي<br>-په زراعتي اقتصاد کې به د اوبو په اهمیت وپوهیږي او نوروته به یې ووایي<br>-په ژوند کې به د اوبو ارزښت وپیژني.<br>-د انرژۍ په تولید کې به له اوبوڅخه د کار اخیستلو په اهمیت پوه شي | |
| ۳-د تدریس میتود | څرګندوني او ډله ییزکار، خبرې پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، په زراعتي اقتصاد انرژۍ تولید، د اوبو اهمیت او که امکان ولري د کمپیوټر له سي ډې ګانو او انترنټ کار اخیستل. | |
| ۵-د ارزونې لارې | شفاهي تحریري ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار. | |
| ٦- په ټولګي کې د زده کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام، روغبړ، دټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولګي بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، له زاړه لوست سره د نوي لوست اړیکه رامنځ ته کول.<br>- هڅوونکي پوښتنه<br>- ایا په زراعتي اقتصاد، د انرژۍ په تولید او ژوند کې د اوبو له اهمیت خبرتیا لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–په زراعتي اقتصاد، د انرژۍ په تولید او ژوند کې د اوبو د اهمیت په باپوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د نوي لوست  مهم ټکیولیکئ.<br>–د انځورونوله مخې په تخته د لیکل شویو مهمو ټکو تشریح وکړئ<br>–د نوي لوست په هکله پوښتنې وکړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ په ټولګي کې دننه د هغو فعالیت مشخص کړئ<br>–د ډله ییز کار څارنه وکړئ.<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنېحلکړئ.<br>–د نوي لوست ارزونه وکړئ، د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–په زراعتي اقتصاد، د انرژۍ په تولید او ژوند کې د اوبو د اهمیت په اړوند نظر څرګندوي<br>–دلوست مهم ټکي لیکي<br>–د نوي لوست شرحې ته په غور سره غوږ نیسي<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وایي<br>–د ټولګي د ننه فعالیت کې برخه اخلي او پایله یې د خپلو استازو په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنېکوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، دلوست لنډیز ته پاملرنه کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

**سم ځواب په نښه کړئ**

**۱–( ج) سم دی**

**۲–(ج) سم دی**

**۳–( الف) سم دی**

تشریحي پوښتنې:

۱–د اوبو له سطحې څخه د کورونو په ورځنیو لګښتونو، ښاریاو کورنیو لګښتونو، زراعتي او صنعتي لګښتونو سر بیره د کالیو او مسافرو په وړلوراوړلو کېکار اخېستل کیږي.

۲–په کرنه کې هم باید د اوبه خور او د اوبه کولو له مناسبو او نویو لارو څخه کار واخیستل شي، څو د اوبو له ضایع کیدلو مخنیوی وشي

۳–اوبه په صنعت کې هم کارول کیږي، لکه چې په میلیونونو لیتره اوبه د صنعت په تولید کې کارول کیږي. دبرېښنا د ځواک په تولید کې د موادو او دستګاوو په کارولو کې هم له اوبو څخه کار اخیستل کیږي، په پرمخ تللیو هېوادونو کې چټلې اوبه بیرته ریسایکل کوي او په ښارونو کې ترې کار اخیستل کیږي.

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د $\frac{۳}{۴}$ برخې په شاوخوا کې د ځمکې سطحه اوبو نیولې ده، دانسانانو، ژویو او نباتاتو ژوند په اوبو پورې تړلی دی، له اوبوڅخه د څښلو او په ورځنیو کارونو کې کار اخیستل کیږي.له اوبو څخه د کرنې، صنعت او دبرېښنا د انرژۍ له پاره هم کار اخیستل کیږي، امکان لري چې بشر له خوړو پرته ډیر وخت ژوندي پاتېشي، خوله اوبو پرته ژوند ته دوام نه شي ورکولی، انسانان په څښلو او ورځنیو فعالیتونو کې خوړو او بوته اړتیا لري یعنې هغه اوبه چې د مالگې اندازه یې ډېره کمه وي، د سمندرونو او بحیرو اوبه ترو شې دي او له هغو څخه د کار اخیستل پاکولو ته اړتیا لري.

د براعظمونو په ترتیب سره د نړۍ د اوبو نامتو حوزې په لاندې ډول دي

۱–په آسیا کې د ژیړ سیند او هوانگهو د اوبو حوزه په چین کې، د آسیا په سهیل ختیځ کې میکانگ سیند، همدارنگه د سیر او آمو سیندونه د افغانستان په شمال کې له ځانگړې اهمیت څخه برخمن دي. چې په دې حوزو کې په ځانگړې ډول په چین او افغانستان کې مهمې حوزې شمیرل کیږي. سر بیره پر دې د دې حوزو له اوبو څخه د بریښنا په تولید کې ډېره گټه اخیستل کیږي.

د سند دریاب حوزه همدارنگه د گنگا او بر هماپوترا سیندونو اوبه چې د بنگال په خلیج کې ورتوییږي، له هغوي څخه هم په کرنه او د بریښنا په تولید کې گټه اخیستل کیږي.

زمونږ په گران هیواد کې د کابل سیند، امو دریاب، د هریرود او هلمند اوبو له حوزو څخه په کرنه او د بریښنا په تولید په لوړه کچه گټه اخیستل کیږي.

## د څلور ویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>۱–د لوست موضوع</td><td colspan="2">د اوبو لګولوحوزې</td></tr>
<tr><td>۲–د زده‌کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې.</td><td colspan="2">ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–له اوبو لرونکو حوزوڅخه به بشپړه معلومات ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>–په دې به پوه شي چې افغانستان په څو اوبو لرونکو حوزو ویشل شویدي.<br>–د هېواد اوبو لرونکو حوزو سر چینې به وپیژني.<br>–اوبو لرونکی حوزې به رسم کړي.</td></tr>
<tr><td>۳–د تدریس میتود</td><td colspan="2">څرګندونې، خبرې‌او ډله ییز کار، خبرې پوښتنې او ځوابونه</td></tr>
<tr><td>۴–د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د اوبو لرونکو حوزونقشې او انځورونه، د امکان په صورت کې د کمپیوټر له سي ډیګانو او انټرنټ څخهکار اخیستل.</td></tr>
<tr><td>۵–د ارزونې لارې</td><td colspan="2">تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦– په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه</td><td rowspan="2">سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل، دتېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره یې اړیکې ټینګول<br>– هڅوونکي پوښتنه<br>– ایا د اوبو لرونکو حوزو په باره کې خبرتیا لرئ؟</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–( د اوبو لرونکو حوزو) اړوند پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست مهم ټکي وليکئ.<br>–د نقشې له مخې د اوبو لرونکو حوزو تشريح وکړئ.<br>–پر تختې ليکل شوي مهم ټکي شرحه کړئ<br>–د نوي لوست په باره کې ستونزې اوارې او پوښتنې وکړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او په ټولګي کې دننه د هغو فعاليت مشخص کړئ<br>– د ډله ييز کار څارنه وکړئ<br>–د نوي لوست ارزونه وکړئ<br>–د لوست لنډيز ووايي<br>–کورنۍ دنده ورکړئ | –د نوي لوست سرليک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د اوبو لرونکو حوزو په اړوند نظر څرګند وي<br>–دلوست مهم ټکي يادداشت کوي.<br>–د نوي لوست شرحې ته په غور سره غوږ نيسي<br>–له تختې مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>–د خپلو ستونزو په اړوند پوښتنې طرحه کوي.<br>–په ډلو کې خپل کارونه تر سره او د خپل استازې په‌واسطه يې د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي چې نور زده‌کوونکي هم پرې پوه شي<br>–د ډله ييز کار په تر سره کولو کې د ښوونکي لارښوونې عملي کوي.<br>–د ارزونې پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډيز ته غوږ نيسي<br>–په کورنۍ دنده ځانونه پوهوي چې په کورونوکې يې تر سره کړي. | ۳۵<br>دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتو ته ځوابونه:**

۱–(ص)

۲–(ص)

۳–(غ)

۴–(غ)

۵–(غ)

**۹–د ښوونکی له پاره اضافي معلومات**

–افغانستان یو غرنۍ هېواد دی، د اوبو لرونکو حوزو سر چینې یې د هندوکش د غرونو لړۍ او دهغه لوړې سیمې جوړوي، په تیره دایمي واورې او یخچالي کتلې چې په واخان، پامیر، ختیځ او لویدیځ هندوکش او د بابا په غره باندې یودبل له پاسه لویږي، د پسرلي او اوړي په ورځو کې دغه واورې اوبه کیږي، روانې اوبه د هېواد په مختلفو حوزو کې رامنځ ته کوي. دواورې او باران د اورښت له کبله په ژمي او دپسرلي په لومړیو ورځو کې د سیندونو د اوبو اندازه زیاتیږي، کله سیلابي متلاطم اوطوفاني کیږي او کله د سیندونو د اوبو دغه زیاتیدل د ځمکې په سطحه کې د نباتاتو دکموالي سبب کیږي، د سیندونو او خوړونو په تګلاره کې د ګاونډیو سیمو د ځمکو شکلونه تخریبیږي او یو څه برخې یې سمسورې او زراعتي ګرځي.

په اوسنیو شرایطو کې په افغانستان کې د اوبو پنځه سیمې شتون لري.

۱–د آمو حوزه: په دې حوزه کې د واخان: کوکچې، پلخمري او امام صاحب سیندونه شامل دي.

دا حوزه د هیواد په شمال کې د سر سبزي او کرنیزو ځمکو په خړوبولو کې ګټه اخیستل کیږي.

۲–د کابل سیند د اوبو حوزه: په دې حوزه کې د غوربند، سالنګ، پنجشیر، للندر او لوګر سیندونه شامل دي. همدارنګه دې حوزې د سره رود، الیشینګ، الینګار او د کنړ سیند پراخه سیمه یې نیولې ده. د دې حوزې له اوبو څخه دوې کرنیزې پروژې (هلډه او غازي آباد) فارمونه او د هغوي ترڅنګ ځمکې خړوبیږي. همدارنګه د سروبي، نغلو او درونټې په سیمو کې د بریښنا لویې دستګاوې، د دې حوزې پر اوبو ګرځي او بریښنا تولیدوي.

۳–د هریرود اوبو حوزه په کرنه او د بریښنا په تولید ارزښتناکه ونډه لري.

۴–د هلمند د اوبو حوزه: دا حوزه پغمان ته نژدې له لوړو برخو سرچینه اخلي، اوبه یې سهیل لویدیځ پلو بهیږي، د قندهار او هلمند ولایتونو له خړوبولو وروسته د سیستان هامون ته ورتویږي، د دې حوزې پر اوبو د کجکي د بریښنا بند جوړ شوي او قندهار ولایت ته بریښنا تولیدوي.

۵–د اوبو ترلې حوزې: په دې حوزې کې د غزني، تاشقرغان او بلخاب سیندونه شامل دي، له دې اوبو څخه د کرنیزو ځمکو په خړوبولو کې ډیره ګټه اخیستل کیږي.

# د پنځه ویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د آمو حوزه | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د آمو له حوزې سره به بشپړه بلدتیا پیدا کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–د آمو د حوزې په اړه به بشپړ معلومات ترلاسه کړي<br>–د آمو دریاب موقعیت بهپه نقشه کې رسم کړي.<br>–د آمو دریاب مرستیالان به وپیژني<br>–د آمو دریاب، بندرونه به وپیژني او له هغوي سره به مینه پیدا کړي.<br>– د کوکچې او کندز دسیند په اړوند به پوه او نوروته به معلومات ورکړای شي | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې، خبرې، او ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د امو دریاب د حوزې عکسونه انځورونه که امکان ولري د کمپیوټر له سي ډيګانو او انټرنیټڅخه دېکار واخیستل شي | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار، او د ښوونکي د یادداشت کتابچه | |
| ٦– په ټولګي کې د زده کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام، روغبړ د ټولګي تنظیم، حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ کار کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره یې اړیکې رامنځ ته کول<br>– هڅوونکي پوښتنه<br>– ایا د امو حوزې په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د آمو د حوزې په اړوند ځانګړې پوښتنه وکړئ.<br>–پر تختې د نوي لوست مهم ټکیولیکئ.<br>–د نقشې او په تخته د لیکل شوي نوي لوست له مخې د آمو حوزه شرح کړئ<br>د نوي لوست له مخې اړوند پوښتنې وکړئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي د ننه د هغو فعالیت وټاکئ<br>–د ډله ییز کار څارنه وکړئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنېحل کړئ<br>–د نوي لوست ارزونه وکړئ<br>–د نوي لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د آمو د حوزې اړوند نظر څرګندوي<br>–د تختې د نوي لوست غوره ټکې لیکي<br>–نقشې او تختې ته پاملرنه کوي د نوي لوست تشریح ته غوږ نیسي<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وایي.<br>–په ټولګي کې د ننه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ټولګې په مخکې د ښوونکې په لارښوونه د خپل استازې پواسطه وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه وایي<br>–د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او ځانونه پرې پوهوي<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتو ته ځواب:**

**۱–د آمو په حوزه کې هغه شمیر دریابونه شامل دي چې د هندوکش د لړۍ شمال او شمال ختیځ له څوړو څخه سرچینه اخلي.**

**۲–Oxus د آمو دریاب په ګاونډ کې د بخدي یا نني بلخ زوړ مدنیت را څرګند شوی او پخوانیو یونانیانو امو د اوکسوس په نامه یاداوه.**

**۳–د افغانستان په خاوره کې د امو دریاب مرستیالان له کندز او کوکچې څخه عبارت دي چې د واخان او پامیر د اوبو په ګډون په سلو کې څلویښت برخه لري او د اوبو د حجم له مخې په سلو کېله ۲۰څخه تر ۳۰ پورې د امو په اوبو کې برخه لري، د دغه دریاب مرستیالان چې د شمال له غاړې ورسره یو ځای کیږي، د تاجکستان او ازبکستان په جمهوریت کې بهیږي، مهم یې له ګونت، وانچ، قزل سو، وخش، کافرنهان او سرخان له دریابو څخه عبارت دي.**

**۴–د امو سیند د افغانستان د اسلامي جمهوریت، تاجکستان او ترکمنستان ترمنځ سیاسي پوله جوړوي.**

**۵–د کوکچې سیند د بدخشان له مهمو او مشهورو سیندونو څخه ګڼل کیږي، له دې کبله چې د کوکچې د سیند ژوروالې زیات او سور یې لږ او په ځینو ځایونو کې له یو کیلو متر څخه تیری نه کوي، له دې امله په ویالواولښتیو کې د اوبو اخیستل ترې ناشونې دي او په بدخشان کې کرنې هم دومره پراختیا نه ده کړې.**

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د آمو په حوزه کې هغه سیندونه شامل دي چې د هندوکش له لړۍ د شمال او شمال ختیځو ځوړو څخه جاري کیږي، یو شمیریې د امو له دریاب سره یو ځای او نوریې د هندوکش د شمال په پراخو دښتو او شګلنو سیمو کې جذبیږي.

د آمو دریاب چې د اکسوس Oxus په نامه هم مشهور دی، د پامیر له لوړو برخو څخه سرچینه اخلي دآموسیند د ارال Aral (د ارال په جهیل کې د تویېدوتر ځای) پورې۲۵۰۰ کیلومتره اوږ دوالی لري، ۱۲۰۰ کیلو متره د افغانستان او تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان ترمنځ سیاسي پوله جوړوي، د امو سیند د کوچني پامیر له کنګلونوڅخه سر چینه اخېستې ده، د امو سیند چې د افغانستان او تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان د جمهوریتونو ترمنځ واقع دی، له سیاسي اړخه د بین المللي سیندونو رژیم لري یعنې دواړه هېوادونه په ټاکلو شرطونو له اوبو څخه د کار اخیستلو حق لري، خو د امو د کیني غاړې د نه مساعدت له نظره او د اوبود اوچتولو له پاره د کافي وسایلو د نشتوالي له کبله د کرنې هغه ځمکې چې د سیند د بستر له سطحې ډېرې اوچتې، دي، د امو له اوبو څخه لږه اقتصادي استفاده کیږي، خوله مرستیالانو څخه یې په تیره د کندز او کوکچې له سیندونو څخه کرنیز او اقتصادي کار اخیستل کیږي. د کندز له سیند څخه د برېښنا د تولید له پاره د پلخمري د سپنسینو ټوکرانو د فابریکې او د روښانولو له پاره کار اخیستل کیږي.

# د شپږ ویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | د کابل حوزه | |
| ۲-د زده‌کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د کابل له حوزې سره به بشپړه بلدتیا ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>-د کابل د حوزې له سیندونو سره به بلد شي<br>-د کابل سیند او د هغه مرستیالان بهد نقشې پر مخ رسم کړي.<br>-د کابل د سیند د اوبو لرونکي حوزې په سمسورتیا کې به د برېښنا په ترلاسه کولو وپوهیږي او نوروته به یې معلومات ورکړای شي<br>-د کابل سیند تګلاره او سرچینه به وپیژني او د هغه سره به مینه پیدا کړي. | |
| ۳-د تدریس میتود | څرګندونې، خبرې، ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، نقشه او د کابل د سیند انځورونه، د امکان په صورت کې د کمپیوټر له سي ډیګانو او انټرنټ څخه کار اخیستل. | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کاراو د ښوونکي د یادداشت کتابچه | |
| ۶- په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړني فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ کار کتل، د تېر لوست ارزونه او د نوي لوست سره یې اړیکې ټینګول<br><br>- هڅوونکي پوښتنه:<br>آیا دکابل د حوزې په اړوند معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د (کابل د حوزې) په بابځانګړي پوښتنبوکړئ.<br>–پر تختې د لوست مهم ټکيوليکئ.<br>–د نقشېله مخېد نوي لوستمهم ټکي تشريح کړئ.<br>–د نوي لوست اړوند پوښتنې وکړئ.<br>–د ټولګي د ننه د هغو فعاليت وټاکئ.<br>–د ډله ييز کار څارنه وکړئ.<br>–زده‌کوونګي په ډلو وويشئ.<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنېحل کړئ.<br>–د نوي لوست ارزونه وکړئ.<br>–د نوي لوست لنډيز وړاندې کړئ.<br>–له ټولګي نه بهر فعاليت توضيح کړئ. | –د نوي لوست سرليکګوري.<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د کابل د حوزې په هکله نظر څرګندول<br>–د لوست مهم ټکي يادداشت کوي.<br>–د نوي لوست (کابل حوزه) تشريح ته غوږ نيسي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وايي.<br>–په ټولګي کې د ننه ډله ييز فعاليت کې برخه اخلي<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>–د نوي لوست د ارزونې پوښتنوته ځوابونه وايي.<br>–د لوست لنډيز ته غوږ نيسي.<br>–له ټولګي بهر فعاليت يادداشتکوي. | ۳۵ دقيقې |

**۸– د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–(ص)

۲–(ص)

۳–(غ)

۴–(ص)

۵–(غ)

٦–(غ)

۷–د کونړ سيند کامې ته نژدې د کابل له سيند سره يوځای کيږي

**۹– د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

د کابل د سيند اوږ دوالی له سرچينې څخه د تويېدو تر ځايه ۵۰۰ کيلومتروته رسيږي، چې ۳٦۰ کيلو متره يې د افغانستان په خاوره کې بهيږي. د کابل سيند د کابل د ښار د لويديځ له ۸۰ کيلو مترۍ د اونۍ درې له نژدې اوله ۳۵۰۰ متره لوړ والي څخه سرچينه اخلي، د خپل بهير په پورتنۍ برخه کې ډېر تيز او مخ پر ځوړې بهيږي. د کابل د سيند تګلوری له لويديځ څخه ختيځ لوري ته دی، له بې شميره حوزو او تنګيو تيريږي، د ساري په توګه کله چې د کابل سيند د للندر له تنګي تيريږي د چهاردهي حوزې ته ننوځي، وروسته له هغه چې له کابل څخه تيرشو، تنګ غاروته ننوځي او دنغلو او سروبې له حوزې څخه تيريږي، وريښمين تنګي ته د اخليږي، وروسته بيا لغمان او د بهسودو له حوزې د لعل پورې تنګي ته ننوځي، د پيښور حوزې ته داخل او د اټک په نژدوکې د سيند له سطحې څخه د ۲۷۱ مترو په لوړالی د سند له درياب سره يو ځای کيږي. د دغه بهير په اوږدوکې له ښي او کيڼې خوا څو مرسيتالان ورسره يوځای کيږي او د کابل دسيند د اوبو د زياتوالي سبب کيږي.

# د اووه ویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د هلمند او سیستان اوبو لرونکیسیمه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د هلمند او سیستان اوبو لرونکي حوزې بهوپیژني<br>ځانگړې موخې:<br>–د هلمند او سیستان له اوبو لرونکې حوزې سرهبه بلدتیا پیدا کړي<br>–د هلمند سیند اوبه لرونکي حوزه به په نقشه کې رسم کړي.<br>–د هلمند سیند له اوبو لرونکي حوزېځخه به د ژوند په بهبود کې د کاراخیستلو معلومات پیدا او نورو ته به یې وړاندې کړای شي<br>–د ادرسکن دسیند له ساحې سره به بلد شي<br>–د هلمند سیند په باره کېبه معلومات پیدا کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرگندونې، خبرې، ډله ییز کار، پوښتنې، او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، دهلمند سیند نقشه او انځورونه، که امکان ولري د کمپیوټر له سي ډیگانو او انټرنېټ څخه کار واخلي | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې) د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار. | |
| ٦– په ټولگي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ کول، د ټولگي تنظیم، حاضرۍ اخېستل، دکورنۍ دندي کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره یې اړیکې رامنځ ته کول | وخت په دقیقو |
| | – هڅوونکي پوښتنه:<br>– ایا د هلمند او سیستان اوبو لرونکې حوزې په باره کې خبرتیا لرئ؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷-د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| -پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>-په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>-د هلمند او سیستان اوبو لرونکو حوزې په باره ځانګړې پوښتنې وکړئ.<br>-پر تختې د لوست مهم ټکیولیکئ.<br>-د نقشې او په تخته د نوي لوست (هلمند او سیستان) مهم ټکیتوضیح کړئ<br>-زده‌کوونکي په ګروپونو وویشئ د ټولګي د ننه د هغو فعالیت وټاکئ<br>-د ډله ییز کار څارنه وکړئ<br>-د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنېحل کړئ<br>-د لوست د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>-د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>-له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | -د نوي لوست سرلیک ګوري<br>-نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>-د هلمند اوسیستان اوبو لرونکي حوزو په باره کې نظر څرګندوي<br>-له تختې د نوي لوست د غوره برخو لیکل<br>-د سیستان د حوزې د نوي لوست شرحېته غوږ نیسي<br>-په ټولګي کې د ننه په ډله ییز فعالیت کې ونډه اخلیاو د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لار ښوونه د خپل استازې په واسطه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>-خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>-د ارزونې پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>-د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې لوست یې زده شي<br>-له ټولګیځخه بهر فعالیت یادداشت اخلي | ۳۵ دقیقې |

**۸-د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

**سم ځواب غوره کړئ**

**۱-(ج) ځواب سم دی**

**۲-د هلمند سیند د پغمان غره له لویدیځو څوړو او د اونۍ د کوتل له لویدیځ څخه د یونیم کیلومتر په واټن سر چینه اخلي، وروسته بیا د (ګردن دیوال) له جنوب څخه تیریږي، د ملایعقوب د کوتل د لمنو په برخه کې د میدان لویدیځ سرحد شاته پریږ دي، د بامیانو جنوبي برخوته د اخلیږي، د ارزګان په ولایت کې له خپلونورو مرستیالانو سره د دهراوود په لوري روانیږي، د کجکي د بند په برخه کې یې سور پراخیزي، د بریښنا د تولید په غرض د زیرمې لویه ساحه جوړوي وروسته بیا د لښکر ګاه په لور روانیږي، په نیمه صحرایي ځمکو کې لوی قوس د درویشان او چهار برجک په برخه کې منځ ته راوړي، د نیمروز ولایت د کمال خان په ساحه کې د شمال په لوریځي، د خوابګاه او کنګ په حصه کې دهډاد د پولو په امتداد په مختلفو پیچلتیا و وخپل جریان ته دوام ورکوي، د خپلې دلتا په برخه کې پر بې شیمره ښاخونو ویشل کیږي.**

**۳-د هلمند د سیند رسوبات ناوړه پایلې لري، د سیستان په هامون کې د هلمند د سیند رسوبات د دې سبب شوي دي چې هرکال د سیند دلتا د لویدیځ په لور خوزیږي په پایله کې د سیستان د هامون اوبه د لویدیځ په لوري ځي او بلاخره د سیستان د هامون اوبه د سر حدي کربښې څخه هغه خوا ځیرمه کیږي.**

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د هلمند سیند د افغانستان ډېر لوی سیند دی چې تقریباً له سرچینې تر تویید لو ځای پورې د افغانستان په خاوره کې بهېږي، د هلمند سیند د هزاره جاتو له غره څخه چې د سمندر له سطحې څخه ۳۸۰۰ متره لوړ والی لري، سرچینه اخلي او ترمصبه پورې چې دلویدیځ او جنوب لویدیځ په لور جاري دي ۱۴۰۰ کیلو متره اوږدوالی لري، د هلمند د سیند په پورتنۍ برخه کې ابشار موجود دی، خو په منځنۍ برخه کې یعنې د ګرشک له سیمېله تیریدو څخه وروسته سیلابي حالت له لاسه ورکوي، تقریبا ۸۰۰ متره ( یعنې له سر چینی تر ګرشکه) یې لوړ والی کمیږي. له هغه ځایه وروسته د هلمند سیند پراخیږي، لوی مرستیال یې یعنې د ارغنداب سیند چې د ترنک، ارغستان او لوراله ګډون څخه تشکیلیږي او د بست کلا ته نژدې ورسره یو ځای کیږي، له هغې وروسته د جنوب په لور روانیږي، د زیات واټن له وهلو وروسته د یوه قوس په شکل د افغانستان په جنوب لویدیځ کې د هلمند په هامون کې توییږي.

## د اته ویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د هریرود حوزه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د هریرود له حوزې سره به بشپړه بلدتیا ومومي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د هریرود د حوزې په اړه به بشپړهمعلومات پیدا کړي<br>–د هریرود د حوزې پر اقتصادي او کرنیز ارزښت باندېبه پوه شي<br>–د هریرود د سیند په باره کې به معلومات تر لاسه کړي.<br>–د هریرود د سیند موقعیت بهپه نقشې کې رسم کړي.<br>–د مرغاب د سیند په اړوند به پوره معلومات پیدا کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې، خبرې، ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، دهریرود دسیند نقشه، که امکان ولري د کمپیوټر له سي ډیګانو او انټرنټ څخه کار اخیستل | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ کول، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخېستل، کورنۍ کار کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره یې اړیکې پیدا کول<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا د هریرود دحوزې په باره کې خبرتیا لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د (هريرود د حوزې ) په اړه ځانګړې پوښتنې وکړئ.<br>–پر تختې د ليکنې، نقشې او د نوي لوست له مخې د هريرود حوزه توضيح کړئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او دهغو فعاليت په ټولګي کې دننه وټاکئ.<br>–د ډله ييز کار څارنه وکړئ<br>–لهزده‌کوونکو د ارزونې پوښتنېطرحه کړئ<br>–د لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعاليت توضيح کړئ | –د نوي لوست سرليک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د هريرود د حوزې په باره کې نظر څرګندول<br>–د هريرود د حوزې نوي لوست ته غوږ نيسي<br>–د ټولګي د ننه ډله ييز فعاليت کې برخه اخلي او د خپل استازې په واسطه د ښوونکي لارښود د ټولګي مخکې نوروته وړاندې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه وايي<br>–د لوست لنډيز وړاندې کوي.<br>–له ټولګي بهر فعاليت يادداشت کوي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–(ب)سم دي

۲–(ج)سم دي

۳–(الف)سم دي

تشريحي:

۱–د هريرودسيند دبابا غره له لوړو څخه سرچينه اخيستې ده

۲–د هريرود سيند له تګاب اوشلان سره له يو ځای کيدلو وروسته د لويديځ په لوري روانيږي

۳–هريرود سيند د ذوالفقار د درې له تيريدو وروسته د ايران دولت او ترکمنستان ترمنځ ګډه پوله ترسرخس پورې جوړوي.

۴–د هريرود له اوبو څخه د اوبه کولو له پاره زيات کار اخيستل کيږي، له همدې کبله په هرات کې د کرنې حالت د قناعت وړدي، ځکه چې د کانالونو او اوبو ګرځولو بندونو په مرسته همدارنګه د هرات د ښار د سلما بند له برکته يېختيځې برخې ډېرې سمسورې اوتازه دي.

۵–د مرغاب سيند د ځمکې د کرنې په برخه کې ورڅخهکار اخيستل کيږي، اقتصادي ارزښت لري، د ماري چاق په برخه کې په اوارو ځمکو کې بهيږي، د کرنې په برخه کېګټې اخيستلو ته مساعد دي، خو په ځينو برخو کې دلوړوالي له مخې د اوبو تيزوالی زيات شوی، ترې لږه ګټه اخيستل کيږي.

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د هریرود سیند د بابا غره دلړۍ له لویدځو لمنو او د سنګل اب او سرجنګل له دوو سیندونو څخه سرچینه اخلي، د دولت یار په برخه کې سره یو ځای کیږي، د هریرود سیند جوړوي، د هریرود سیند له ختیځ څخه لویدیځ ته د ۴۰۰ کیلو مترو په اوږدوالي د سفید کوه د غرونو دلړۍ او کاسه یې مرغ ترمنځ بهیږي. دا اوبه د ښار په لویدیځ کې له خپل ستر مرستیال تګاویشان سره چې ۲۰۰ کیلومتره شاوخوا د هریرود له سیند سره موازي د سیاه کوه په جنوبي لمن کې بهیږي، یوځای کیږي او له هغې وروسته له غرنیو ځمکو تیریږي، د هرات ښارته ننوځي.

د مرغاب له سیند څخه د ساحل د لوړوالي له امله د افغانستان په خاوره کې د مرغاب له ناحیې څخه پرته کرنیز کار کې ګټه نه اخیستل کیږي، خو د مروي په پنجدې کې زیات شمیر بندونه جوړ شوي او له هغو زیات کار اخیستل کیږي، خو د بالامرغاب او ماري چاق په برخه کې چې د ترکمنستان پولوته نژدې پرته ده، یوازې د مرغاب د سیند غاړې سمسوري او شنې شویدي او د پنجدې ناحیه له ۱۸۸۵ کال څخه مخکې د افغانستان په خاورې پورې تړلې وه.

# د نه ویشتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | تړلې حوزې | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–له تړلو حوزو سره به بشپړه بلدتیا ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>–له تړلو حوزو سره به پشپړه بلدتیا پیدا کړي.<br>–تړلې حوزې به وپیژني<br>–د غزني سیند په باره کې به معلومات تر لاسه کړي<br>–د بلخاب له سیند سره به بلد شي<br>–د قیصار د سیند موقعیت به وپیژني. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې، خبرې، ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، د تړلو حوزو نقشه، که امکان ولري د کمپیوټر سي ډي ګانو او انټرنټ کارول | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار. | |
| ٦– په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ کول، د ټولګي تنظیم، حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ کار کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره یې اړیکې رامنځ ته کول<br>– هڅوونکي پوښتنه:<br>– ایا د تړلو حوزو په باره کې خبرتیا لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–( د تړلي حوزې ) په هکله ځانګړې پوښتنې وکړئ.<br>–د نقشې له مخې پر تختې د لیکل شوي لوست غوره ټکي تشریح کړئ.<br>–نوی لوست (تړلي حوزې) توضیح کړئ.<br>–زده‌کوونکید ټولګي د ننه پهډله ییز فعالیت کې تنظیم او د ډله ییز کار څارنه یې وکړئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنېحل کړئ<br>–د لوست ارزونه وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د تړلو حوزو په هکله نظر څرګندوي<br>–نقشې او د تختې لیکنې ته پاملرنه کوي، د نوي لوست شرحي ته غوږ نیسي، د تړلوخوزو توضیح ته پاملرنه کوي.<br>–د ټولګي په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او پایله یې د ښوونکي په لارښوونه د خپل استازې په واسطه نوروته وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>–د لوست اړوند د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت اخلي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–د افغانستان د تړلې حوزې سیندونهغزني، بلخاب، قیصار، سمنګانو او د اندخویله سیندونو څخه عبارت دي

۲–د غزني سیند د سوسنګ، جغتو، شش ګاو او خواجه عمري له سیمو تیریږي.

۳–د بلخاب درې ویالې له نهر شاهي او بلخ له نهرونو څخه عبارت دي

۴–د سلطان بند د غزني د سیند له پاسه جوړ شوی، چې له ۲۰ تر۲۵ میلیون مترو مکعب اوبو ظرفیت لري.

۵–د قیصار سیند د ترکستان د تیر بند د شمال له څوړو سر چینه اخیستې او د اندخوی د ښار په شګو کې جذبیږي.

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

په افغانستان کې ځینې هغه سیندونه چې له لوړو غرنیو ارتفاعګانو څخه سرچینه اخلي او جریان یې په یو تړلي تګلوري پورې منحصر شوی او یا جذبیږي، د تړلې حوزې د سیندونو په نامه یادیږي، د ساري په توګه د غزني، بلخاب، قیصار، او داندخوی سیندونه دي.

تړلې حوزې (سیمې): له هغو سیمو څخه عبارت دي، چې په افغانستان کې یې د ننه اوبه راټولې شوي، خو د هیواد له پولو نه خارجیږي، لکه:

۱– د غزني د سیند تړلي حوزه یا سیمه چې له اوبو څخه یې د سلطان د بند په شاوخوا کې د کرنې لپاره ګټه اخیستل کیږي او د غزني په سهیل کې یې د غزني و لاړې اوبه رامنځ ته کړي، د ښکلو او ښایسته الوتونکو د ټولیدو مرکز یې جوړکړیدي.

۲– د هیواد په شمال کې د قیصار، بلخاب او د تاشقرغان سیندونو ټولې بسته او تړلي سیمې جوړوي، بې له شکه د هغو سیندونو له اوبو څخه په کرنه کې ګټه اخیستل کیږي.

## دیرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د افغانستان مشهور جهيلونه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پای کې لاندنۍ موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د افغانستان له مشهوروجهيلونو سره به بشپړه بلدتيا وموميځانګړې موخې:<br>–د افغانستان له مشهورو جهيلونوسره به بشپړه بلدتيا ترلاسه کړي.<br>–د سيستان هامون، د پوزک هامون او د صابري هامون به وپيژني<br>–د دغ نمد او نمکسار کول په هکله به خبرتيا حاصله کړي<br>–د ګودزيره جهيل، د ناور د دښتې و لاړې اوبه، او د غزني ولاړې اوبه بند امير او د زرکول جهيل به وپيژني.<br>–د چقمقتين د جهيل او د شيوا جهيل په هکله به معلومات تر لاسه کړي. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرګندونې، خبري، ګروپي کار، پوښتنې، او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشير، د ښوونکي لارښود کتاب، په ټولګي کې د ننه فعاليت ارزونه او عملي کار | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې) د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه او عملي کار. | |
| ٦– په ټولګي کې د زده‌کړې او تدريس لومړنې فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ کول، د ټولګي تنظيم، حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ کار کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره يې اړيکې رامنځ ته کول | وخت په دقيقو |
| | – هڅوونکي پوښتنه:<br>– ايا د افغانستان له جهيلونو سره بلد تيا لرئ؟ | ۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو زده‌کړېز فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د افغانستان د مشهورو جهیلونو په اړوند ځانګړې پوښتنې طرحه کړئ.<br>–له نقشې او تختې څخه په ګټه اخیستلو سره د افغانستان مشهور جهیلونه، توضیح کړئ<br>–د لوست اړوند پوښتنې وکړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې دننه د هغو فعالیت وټاکئ.<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–د کورنۍ دندې په اړه لارښوونه وکړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د افغانستان د مشهورو جهیلونو نقشې او پر تختې د لیکل شوو ټکو تشریح ته پاملرنه کوي.<br>–د نوي لوست تشریح ته پاملرنه کوي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځوابونه وايي<br>–د ټولګي په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپل فعالیت معلومات د ښوونکي په لارښوونه نوروته د خپل استازې په واسطه وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنېکوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه وايي<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت یادداشت اخلي | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱– (ج) سم دی

۲–( ج) سم دی

۳–( ج) سم دی

۴–( ب) سم دی.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

افغانستان یو شمیر کوچني او لوی جهیلونه لري چې په لاندې ډول دي. د شیوا جهیل، د چقمقتین جهیل، د زرکول جهیل، بند امیر، د غزني و لاړې اوبه، د ناور د دښتې ولاړې اوبه، د ګودزیره جهیل، د دغ نمد او نمکسار د کول جهیلونه، صابري هامون، د پوزک هامون، دسیستان هامون او نور.

د افغانستان نامتو جهیلونه په دوو بیلا بیلو کتګوریو کې تر بحث لاندې نیسو.

۱– کنګل لرونکی جهیلونه، چې د واخان په لوړو نقطو کې پراته دي.

د بیلګې په ډول د چقمقتین جهیل، د زرکول جهیل په همدې ډول د بدخشان په شمال ختیځ کې د شیوا جهیل دا ټول خوږې اوبه لري او د سیمې په مرطوبوالي کې ځانګړې ارزښت لري.

۲– هغه جهیلونه چې د افغانستان په لویدیځ او یا هم په سویل لویدیځ کې تقریبا په نیمه سارایي سیمو کې پراته دي، لکه: د هرات د نمکسار، دغ نمدي، د ګودزیره جهیل، چې مالګینې اوبه لري، په غالب ګمان سره له ځینو کمیاوي عملیو وروسته له دې جهیلونو څخه مالګه هم تر لاسه کیږي.

په غزنیو جهیلونو کې نه ګوني بندونه، لکه د امیر بند د پاملرنې وړ دی چې د بلخاب دریاب لومړنۍ سر چینه جوړ وي او له هغه څخه په کرنه کې ډیره ګټه اخیستل کیږي.

## يو ديرشم لوست د تدريس لاربنود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | وچکالي او د اوبو کمښت | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د وچکالی او اوبو له کمښت سره به بشپړه بلدتيا ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>–له وچکالۍ او اوبو دکمښتپه اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>–په دې به پوه شي چي وچکالي څه وخت منځ ته راځي<br>–د وچکالۍ له اقتصادي ستونزو به خبرتيا تر لاسه کړي او نوروته به يې معلومات وړاندې کړي. | |
| ۳–د تدريس لارې | څرګندونې، خبرې، ډله ييز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشير، د ښوونکي لاربنود کتاب، د وچکالۍ او د اوبو د کمبود انځورونه او عکسونه، که امکان ولري، د کمپيوټر له سي ډيګانو او انټرنټ کار اخيستل. | |
| ۵–د ارزونې ميتود | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه او عملي کار. | |
| ۶– په ټولګي کې د زده‌کړې او تدريس لومړنې فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ کول، د ټولګي تنظيمول، حاضرۍ اخېستل، د کورني کار کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره اړيکې پيدا کول<br>– هڅوونکي پوښتنه:<br>– ايا د وچکالۍ او د اوبو د کمښت په اړوند خبرتيا لرئ؟ | وخت په دقيقو<br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو زده‌کړېز فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د وچکالۍ او اوبو د کمښت په اړوندځانګړې پوښتنې طرحه کړئ.<br>–د نوي لوست غوره ټکې پر تختېوليکئ او د نقشې له مخې وچکالۍ او د اوبو کمښت توضيح کړئ<br>–د نوي لوست په هکله پوښتنې وکړئ<br>–ز ده کوونکي په ډلو وويشئ په ټولګي کې د ننه د هغو فعاليت وټاکئ.<br>–د ډله ييز کار څارنه وکړئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د نوي لوست ارزونه وکړئ<br>–د نوي لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعاليت توضيح کړئ | –د نوي لوست سرليک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د وچکالۍ او اوبو دکمښت په هکله نظر څرګندوي.<br>–د وچکالۍ او اوبو د کمښت نوي لوست ته غوږ نيسي په نقشې کې يې پيژني<br>–د نوي لوست پوښتنو ته ځواب وايي<br>–د ټولګيد ننهپه ډله ييز فعاليت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي په مخکې د خپلو استازو په واسطه وړاندې کوي.<br>–د نوي لوست ستونزې له ښوونکي سره شريکوي او پوښتنېکوي.<br>–د نوي لوست د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د نوي لوست لنډيز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعاليت ليکي | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–په يو کال کې له منځنۍ حد کښته د اورښت او وچوبې د اندازې زياتوالی ته وچکالي وايي، يا په بل عبارت وچکالي د اورښت کمښت اولږ والي چې انسان، ژويو، نباتاتو او خاورې ته بسنه ونه کړي او اکوسيستم ګډ وډ کړي له وچکالۍ او د اوبو له کمښت څخه عبارت دی.

۲–په وچو او نيمه وچو سيمو کې د وچکالۍ زياتوالی يعنې هغه سيمې چې دهواجوي حالتزياتوالياو له خاورې د زيات براس سبب کيږي، منځ ته راوړي.

۳–په افغانستان کې وچکالۍ د زراعتي او د اقتصاد په برخه کې زياتې ستونزې پيدا کوي.

سمې اونا سمې پوښتنې:

۱–(ص)

۲–(غ )

۳–(غ)

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

وچکالي یوه طبیعي او پیچلې ښکارنده ده چې امکان لري، په هر ډول اقلیم هم وچ، مرطوب، حاره یي، او ان قطب ته نژدې هم واقع کیږي. د اوبو کمښت په وچو او نیمو وچو سیمو یعنې په هغو سیمو کې چې د هوا د وچوالي زیادښت له خاورې د زیات براس سبب کیږي، رامنځ ته کوي.

وچکالي، څاروي او انسانانو لپاره یو لوی ګواښ دی او کرنیز محصولات له ستونزو سره مخامخ کوي. وچکالي یو نا څاپه رامنځ ته کیږي، بلکې وچکالي د اوبو په کچه او سیمه ییز اقلیم کې بدلون رامنځ ته کوي. له بله پلوه له طبعیت سره د انسان بې پروایي پهدې معنا چې انسانان هڅه کوي، ځنګلونه له منځه یوسي او یا هم په استوایي سیمو کې څارویو د زیادې څرولو له امله واښه له منځه ولاړ شي، په پایله کې شنې دښتې په اوچو او سپیرو ډاګونو اوړي. څه موده پخوا مو د دې ښه بیلګه، په خپل ګران هیواد افغانستان کې ولیده، ډیر بندونه وچ شول د کاریزونو اوبه وچې شوې، تر ځمکې لاندې اوبه نورې هم ښکته شوې او د دریابونو د اوبو حجم کم شو چې دا موضوع د قرغې، نغلو او سروبي بندونو، همدارنګه د سیستان په هامون کې ولیدل شوه. چې د اوبو کچه ډیره کمه شوې وه او انسانان یې لیږدیدو ته اړ کړل.

## د دودیرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | طبیعي چاپیریال | |
| ۲-د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-چاپیریال به په بشپړه توگه وپیژني<br>ځانگړې موخې:<br>-د اوسیدو چاپیریال او طبیعي چاپیریال په باره کې به معلومات ترلاسه کړي<br>-طبیعي چاپیریال به وپیژني.<br>-د طبیعي سر چینو په اړوند به خبرتیا ترلاسه کړي.<br>-د اوسیدو د چاپیریال ساتنې اغیزې بهپه روغتیا باندې وپیژني او نوروته به یې معلومات ورکړي | |
| ۳-د تدریس میتود | د لوست څرگندونېگروپي کار، یوکسیز او دوه کسیزکار | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د اوربښتونو انځورونه او عکسونه، د امکان په صورت کې جغرافیایي فلمونه، ویدیویي، تلویزیوني د کمپیوټر له سي ډیگانو او انټرنټڅخه کاراخیستل. | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶-په ټولگي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولگي بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول<br>-هڅونکي پوښتنه.<br>-ایا پوهیږئ چې د اوسیدلو چاپیریال څه ته وایي؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقو | د زده‌کوونکو زده‌کړیز فعالیتونه | ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د استوګنې د چاپېریال او طبیعي چاپېریال په هکله نظر څرګندوي<br>–د لوست مهم او غوره ټکي لیکي<br>–نقشې ته پاملرنه کویاو په دقت سره غوږ نیسي چې د استوګنې د چاپېریال او طبیعي چاپېریال د ساتنې په هکله له محترم ښوونکي سره یوځای خبرې وکړي<br>–د ټولګي کې د ننه په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د استازې په واسطه د ښوونکې له لارښوونو سره د ټولګي مخکې بیانوي چې نور زده‌کوونکي پرې پوه شي<br>–مهم ټکي او خپلې پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ارزونې څو پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د نوي لوست لنډیز اوري او ځانونه پرې پوهوي<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت په کورونو کې اجرا کوي. | –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د استوګنې د چاپېریال او د طبیعي چاپېریال په اړوند ځانګړې پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د مهمو ټکو لیکل، د نقشې پرمخ د طبیعي چاپېریال او د استوګنې چاپېریال توضیح کړئ<br>–ز ده کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي د ننه د هغو فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–له نوي لوست څخه د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>–د نوي لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضیح کړئ |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–د استوګنې چاپېریال د بیولوژیکي فزیکي، ټولنیز، خپل منځي او له یو بل سره د هغو مقابلو اړیکوښکارندو څخه عبارت دی چې په مجموع کې د انسان په ژوند اغیزې کوي، په بل عبارت انسان او دهغه شاوخوا چاپېریال له اقلیمي ټولنیزو شرایطو او دهغو متقابلې اغیزې د استوګنې د چاپېریال په نامه یادیږي، نو له دې کبله د استوګنې چاپېریال د ژوندیو او نا ژوندیو عناصرو د یوځای کیدلو مجموعه ده، چې انسان یې نه بېلېدونکې جز دی او د خپل ژوند له دوام سره په مستقیمه توګه تړلي دي.

۲–طبیعي چاپېریال له هغو ټولو شتو شیانو څخه چې زموږ په شاوخوا کې پراته دي، چاپېریال جوړیږي، په عمومي توګه په چاپېریال کې دوه ډوله عناصر لیدلی شو، اول حیاتي یا ژوندي عناصر، لکه: انسان، نباتات او ذره بیني جسمونه دویم د نا ژوندیو عناصرو چاپېریال، لکه اوبه، هوا، خاوره، تیږې او نور

۳–طبیعي چاپېریال له غرونو، څړځایونو، تیږو، سیندونو، جهیلونو، اوبو، هوا، خاورې، انسانانو، ژویو، نباتاتو، ذره بیني جسمونو او نورو څخه جوړ شویدي.

۴–هغه چاپېریال چې مونږ په کې ژوندکوو، ځانګړي هنري نظم او قانون لري، باران د باد لګیدل، د یخچالونو رامنځ ته کېدل، د بوټو شنه کیدل، د کال د موسمونو بدلون، ټول په ځانګړو اساسي قوانینو رامنځ ته کیږي

**۹–د ښوونکی له پاره اضافي معلومات**

د پېړیو په اوږدوکې انسانان په دې وپوهېدل، چې همدغه چاپېریال زموږ زیاتې اړتیاوې پوره کولی شي، له دې کبله له دغوښکارندو سره اړیکې په چټکتیا ټینګیږي او په دې اړوند یې زیاتېتجربې تر لاسه کړي، انسانان وپوهېدل چې په هر چاپېریال کې باید په ځانګړې توګه له طبیعت سره اړیکه ټینګه کړي، ځو د هغو له امکاناتو څخه ګټه واخلي، تودې او وچې سیمې د کرنې او غذا د تولید له پاره مناسبې نه دي، په جبه زارو او سمسورو سیمو کې چې له سیندونو او جهیلونو سره نژ دېدي، ټول شیان د مطلوب ژوندانه د پرمختګ له پاره برابر دي، د همدې سیندونو پر غاړوتمدنونه راپیدا شوي دي، په هر ځای کې انسانان هڅه کوي، څو د طبیعي چاپېریال شرایط وپېژني او خپل ژوند ورسره برابر کړي او یا چاپېریال ته له خپلې اړتیا سره سم بدلون ورکړي.

کوم چاپېریال چې موږ په کې ژوند کوو، ځانګړینظم او قانون لري، د باران اوربنت، باد لګېدل، د یخچالو واقع کېدل د بوټو زرغونېدل، د کال د موسمونو بدلون ټول د ټاکلو قوانینو پر اساس واقع کیږي، موږ باید دغه قوانین او نظام وپیژنو او له چاپېریال سره خپله اړیکه د هغو پر اساستنظیم کړو، نو له دې کبله دا زموږ دنده او زموږ وجیبه ده چې په چاپېریال کې د ژوند په ترځ کې د ښکارندو د پیژند لو له لارې او له هغو څخه د خبرتیا په لرلو د هغو د اړیکو له کشف سره سم چلند وکړو.

## د درې دیرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د ځنګلونو ساتنه | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د ځنګلونو له ساتنې سره به بلدتیا ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>–د ځنګلونو د ساتنپه اړه به معلومات پید اکړي<br>–د ځنګلونو د ساتنې لاربه وپیژني<br>–په روغتیا او د استوګنې په چاپیریال به د ځنګلونو د اغیز په ګټه پوه شي<br>–له ځنګلونو څخه به د کار اخیستلو په لارو بلد او نورو ته به یې په اړه معلومات ورکړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییزکار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د لوست اړوند انځورونه که امکان ولري جغرافیایي، ویډویي، تلویزیوني فلمونه او د کمپیوټر له سي ډي ګانې.او انترنټ څخه ګټه واخلئ | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ٦– په ټولګي کې د تدریس او زده کړې لومړني فعالیتونه | سلام او روغبړکول، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره یې اړیکې رامنځته کول<br>هڅوونکي پوښتنه:<br>– ایا پوهیږئ چې ځنګلونه د انسانانو او ژویو په ژوندانه کې څه اهمیت لري؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د ځنګلونو په اړوند ځانګړې پوښتنې وکړئ.<br>–د ځنګلونو د ساتنې اړوند خبرې وکړئ<br>–پر تختې د لوست مهم ټکي ولیکئ<br>–د ځنګلونو ساتنه، د بوټو او ځړ ځایونو نوی لوست توضیح کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې دننه د هغو فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>– د ارزونې په اړه پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د ځنګلونو د ساتنې اړوند له محترم ښوونکي سره یو ځای بحث کوي.<br>–د لوست مهمو ټکو ته پاملرنه کوي.<br>–د ښوونکي توضیح ته غوږ نیسي<br>–په ټولګي کې د ننه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکې په لارښوونه د ټولګي په مخکې وړاندې کوي چې ټول پرې پوه شي<br>–د مهمو ټکو په اړوند خپلې پوښتنېکوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت اجرا کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–ځنګلونه ارزښنا کې اقتصادي ګټې لري، د طبیعي ځنګلونو وده او نمو الهٰي نعمتونه دي چې په طبیعت کې شتون لري او د ځمکې کرې ته یې روغتیا یې او اقلیمې ښه رونق ورکړی دی، ځکه چې د ځنګلونو شتون د هوا په پاکولوکې چې مور یې تنفس کوو، ځانګړې نقش لري.

۳–په څلورو کټګوریو ویشل شوي دي

۱–د ستنې په شان پاڼې لرونکي ځنګلونه، (مخروطي)،

۲–پلن پاڼي او پاڼې تویېدونکوونو ځنګلونه

۳–له دواړو قسمونو مخلوط ځنګلونه.

۴–استوایي چترۍ ته ورته ځنګلونه

۳–د ټولو په ژوندانه کې ځنګلونه زیات ارزښت او نقش لري، لکه: چې له ټولو مهمه دنده دا ده چې کاربن ډای اکساید اخلي او اکسیجن تولیدوي، د سیلاوونو مخنیوی کوي، څانګې او پاڼې یې د باران تیزوالی کموي، د موټرونو کار خانو او الوتکو لوړاوازونه کموي، د دوړو او ګردونو مخه نیسي، د ژوو د اړ تیاوړ واښه برابروي، په صنایعو او در مل جوړولو کې ترې کار اخیستل کیږي، د ځناورو د استوګنې ځای دی، د کاک ربړ ونې، صناعتي سرچینه ده.

۴–باید له بوټو او وښویې سمه ساتنه وکړو، څو زیات حاصلات ورکړي.

۵–له بوټو او وښو څخه یې د ژویو د خوراک له پاره کار اخیستل کیږي.

**۹-د ښوونکی له پاره اضافي معلومات**

د ۱۹۸۰ لسیزې د کلونو په اوږدو کې د نړۍ په زیاتو برخو کې د ځنګل نشتوالی مولیدلی د شمیرنې له مخې یوازې په استوایي برخو او تودو ځایونو کې هر کال پنځلس میلیونه هکتاره د ځنګلونو له مساحت څخه کم شویدي، دغه بهیر په ۱۹۹۰ لسیزه کې زیات چټکوالی درلود او په وروسته کې دغه شان دوام لري.

د فایو (Forest International organization (Fio د موسسې وروستنې تعریف چې د رسمي مسٔوولیت برخه يې ځنګلونه جوړوي، د یادولوړ دی چې طبیعي یا مصنوعي ځنګلونه چی ونې یې په درې ډوله دي، لکه اوکالیپتوس، کاج، سبر او دغه شان نورو پورې ځانګړې دي. په ښارونکې هم باید یوه شنه یا ځنګلی ساحه جوړه شي ترڅو دښارونو هوا پاکه کړي.

## د څلوردیرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د وحشي ژویو د ژوند ساتنه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د وحشي ژوو د ژوند ساتنېبه اړه به معلومات تر لاسه کړي<br>ځانگړې موخې:<br>–د وحشي ژوو په ساتنه به وپوهیږي.<br>–د وحشي ژویو د ساتنې لارې به وپیژني<br>–د ژوو او مرغانو د کمښت د مخنیوي له لارو سره به بلدتیا.<br>–د بامیانو د ملي پارک موقعیت (بند امیر) د نقشې پر مخ وښيي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرگندونې او ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د وحشي ژوو انځورونه که امکان ولري جغرافیایي، ویدیویي تلویزیوني، د کمپیوټر له سي ډیگانو او انټرنټ کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶– په ټولگي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولگې څخه د بهر فعالیت لیدنه، د تېر لوست ارزونه، د نوي اوزاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br>– هڅوونکي پوښتنه:<br>آیا غوره نه ده چې د وحشي ژوو ساتنه وکړو؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د وحشي ژوو د ساتنې ځانګړې پوښتنې طرحه کړئ.<br>–د ژوو او مرغانو دله منځه تللو مخنیوی او دملي پارکونو ساتنه وکړئ.<br>–د وحشي ژوو د ژوند ساتنې په باره کې بحث وکړئ<br>–پر تختې د لوست د مهمو ټکو لیکل<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي د ننه ډله ییز کار او د هغه فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د نوي لوست د ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د نوي لوست لنډیزو وایي او د لوست ارزونه وکړي.<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د وحشي ژوو د ساتنې په هکله نظر څرګندوي<br>–د وحشي ژوو د ژوند د ساتنې په باره کې له محترم ښوونکي سره یو ځای بحث کوي او د ملي پارکونو د ساتنې دنده اخلي<br>–د وحشي ژوو د ساتنې په اړه خبرې کوي.<br>–د ښوونکي توضیح ته په غور سره غوږ نیسي د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې فعاله برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي چې ټول پرې پوه شي<br>–مهم ټکي او خپلې پوښتنې طرحه کوي.<br>–د لوست ارزونه کې برخه اخلي او ځوابونه وایي<br>–د لوست لنډیز وړاندې کوي.<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت اجرا کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–زموږ د هېوادوحشي ژوي تر استوا لاندې، د مدیترانې، معتدله او قطب لاندې چاپیریال ژویوته ورته دی.

۲–د هغو غوښه او پوستکی زموږ په هېواد کې اقتصادی ارزښت لري.

۳–ملي پارکونه له طبیعي ارزښتناکو ژوو څخه برخمن دي، چې لږ تره لږه زر هکتاره دي او د دولت په واسطه یې ساتنه کیږي.

۴–له وحشي ژوو څخه کولاي شو چې ژوبڼونو کې ګټه واخلو.

۵–د ملي پارکونو ساتنه د ټولنې د ټولو افرادو دنده ده، موږ باید د هغو په ساتنه کې زیاته هڅه وکړو، څو زموږ ملي پارکونه سمسور، زرغون، پاک او ښکلي اوسي، څو ټول خلک ترې ګټه واخلي او خپلو کوچنیانو ته هم ور زده‌کړو چې همداسې عادت شي چې د کثافاتو له اچولو او د ګلانو له شوکولو مخنیوی وکړي.

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د ژوو پیژندونکو پوهانو Zoologists له مطالعه کولو چې د سیمو او د هېواد له بیلا بیلو ناحیو څخه داسې څرګندیږي، چې افغاني ژوي مدیترانه یې او تر استوا لاندې چاپیریال کې شتون لري، او هغو ژووته ورته دي، له دې کبله افغانستان د ژوو د اتصال د قلمرو ساحه تر قطب لاندې او استوا لاندې سیمو ترمنځ ساحه جوړوي.

د تاریخي دورو په منځ کې زیات شمیر ژوي په غرنیو سیمو کې ژوند کاوه، له څو کالو را په دې خوا د نورستان په ځنګلونو کې یږه موجوده وه، سربیره پر دې د امو دریاب په غاړو کې ببر هم ژوند کاوه، پړانګ د هندوکش په لوړو ځایونو کې اوسیده. سر بیره پر دې وحشي خرس د هېواد په جنوب لویدیځو سیمو کې په سر ګردانه توګه ژوند کوي. لیوه په وچکالیو کې اوارو ځمکوته راښکته کیږي. په دې سر بیره ګیدړه د نړۍ په غرونو او د هېواد په شمال کې، وحشي پسه اوغرنۍ وزه او د هندوکش په جنوب لویدیځو دروکې بیزو او سور لنډۍ په هر ځای کې زیات شمیر شتون لري.

## د پنځه دېرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | د اوبو، خاورې او هوا ساتنه | |
| ۲-د زده‌کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د اوبو، خاورې او هوا په ساتنه به پوه شي<br>ځانګړې موخې:<br>-د اوبو، خاورې او هوا په ساتنه به وپوهیږي<br>-د انسان په روغتیا کې به د اوبو، خاورې او هوا په ګټو او ضررونو وپوهیږي<br>-د اوبو، خاورې او هوا د ساتنې په لارو به پوه شي او نوروته به یې معلومات ورکړي | |
| ۳-د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د اوبو، خاورې او هوا انځورونه، د امکان په صورت کې جغرافیایي، ویډیویي، فلمونه او دکمپیوتر سي ډیګانیاو انټرنټ | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ٦- په ټولګي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، حاضرۍ اخیستل، له تولګي څخه بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، د نوي لوست او زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول<br>- هڅوونکي پوښتنه:<br>- د اوبو، هوا او خاورې دککړتیا مخنیوی څنګه کوو؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړېفعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټه خوله د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د اوبو، خاورې او هوا ځانګړي پوښتنې طرحه کړئ.<br>–د اوبو، خاورې او هوا په هکله غوره ټکئ په تختېوليکئ.<br>–پر تختې د لوست د ليکل شوومهمو ټکو روښانه کول<br>–د اوبو، خاورې او هوا د ساتنېپه هکله غوره ټکي او نوی لوست توضيح کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او په ټولګي کې د هغو فعاليت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–پوښتنې طرحه کړئ<br>–د نوي لوست ارزونه وکړئ<br>–د نوي لوست لنډيز په ساده الفاظو وړاندې کړئ، چې زده‌کوونکي پرې پوه شي<br>–د ټولګي نه بهر فعاليت توضيح کړئ | –د نوي لوست سرليک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د اوبو، خاورېاو هوا د ساتنې په هکله له محترم ښوونکي سره يو ځای بحث کوي.<br>–د نوي لوست مهمو ټکو ته پاملرنه کوي.<br>–د ښوونکي توضيح ته غوږنيسي<br>–خپلې پوښتنې طرحه او د مهمو ټکو او د لوست تشريح ته پاملرنه کوي.<br>–په ډلو کې د خپل فعاليت نتيجه د خپلو استازو په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې تشريح کوي.<br>–پوښتنو ته لنډ او مناسب ځوابونه وايي<br>–د لوست ارزونې پوښتنوته ځوابونه وايي<br>–د لوست لنډيز ته پاملرنه کوي چې په لوست پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعاليت اجرا کوي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–اوبه د ژوند سرچينه ده. انسانان، ژوي او نباتات د خپل ژوند د دوام له پاره اوبو ته اړتيا لري، د ټولو ژونديو موجوداتو شتون په اوبو پورې اړه لري، په ساه لرونکو کې مهم رول لري.

۲–خاوره يوه ارزښتناکه ماده ده چې انسانان ترې په کار اخيستلو، د خوراکي او صنعتي محصولاتو دتر لاسه کولو لپاره تخمونه کري، خاوره د نباتاتو، زراعت، ځنګلونو او ژوو دودې او نمو يو مهم عنصر دی او د غذا د توليد له پاره د ځمکې په سطحه د ژوندانه د بقا به خاطر ورته اړتيا ليدل کيږي.

۳–هوا زموږ په ژوند کې مهم رول لري، موږ ټول بايد د خپل ژوند د دوام له پاره د هوا د وضعې له ترکيب څخه خبر اوسو، ټول ژوندي موجودات هوا او اکسيجن ته اړتيا لري.

**۹–د ښوونکی له پاره اضافي معلومات**

هر انسان د اوبو په څښلو سر بیره د خپلو ټولو فعالیتونو له پاره اوبوته اړتیا لري، د کرنیزو صنعتي او کورنیو فعالیتونو له پاره اوبه په زیاته اندازه د انسانانو د کار اخیستلو له پاره په کارېږي، خوله بده مرغه د اضافي لګښت او د صنعتي فعالیتونو له کبله اوبه ککړېږي، د اوبو سرچینې تر تهدید لاندې دي، نو د هر سړي دنده د اوبو ساتنه ده، ځکه چې د اوبو د سرچینو ککړتیا د انسانانو، او ژوو ژوند له جدي خطر سره مخامخ کړیدي.

خاورې د ځمکې د پورتنۍ طبقې مخ جوړ کړیدي، په خاورې کې ژوندي موجودات، هوموس د بوټو له فعالیت ځناورانو او په کې له موجودو باکتریا وو څخه منځ ته راځي، خاوره د زراعت، ځنګلونو او ژوو له پاره، د بوټو دودې او نمو له پاره له مهمو عناصرو څخه ده چې په مجموعه کې د بوټو او حبوباتو وده ور پورې اړه لري او موږ د غذا د تولید له پاره ورته اړتیا لرو، خو که انسان په سمه توګه خاوره ونه ساتي، خاوره په ډېره چټکتیا خرابیږي او له استفادې نه وځي.

اوبه او هوا زموږ په ژوندانه کې مهم رول لري، موږ باید د خپلو کارونو د تر سره کولو له پاره د اوبو او هوا له حالت نه خبراو سو، د ساري په توګه که وغواړو چیرې لاړ شو، د کالیو ډول چې باید واېي غوند و اوهم غواړ وچې په ازاده هوا کې سپورټ وکړو، د اوبو او هوا له وضعې باید خبرتیا و لرو.

(Humus)د خاورې پورتنۍ برخه عضوي حصه ده چې دونو د پاڼو او د وښود عضوي موادو ګنده کیدل د حبوباتو او نورو نباتاتو د ودې له پاره زمینه برابر وي.

## د شپږ دیرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د ښار د هوا ککړتیا | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندېموخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د ښار د هوا د ککړتیا په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د ښار د هوا له ککړتیا څخه به په ځان ساتنې وپوهیږي<br>–د ښار د هوا د ککړتیا په مخنیوي به وپوهیږي او ورسره به مینه پیدا کړي<br>–په روغتیا باندې به د ښار د هوا د ککړتیا په اغیز او ضرر وپوهیږي او نوروته به یې تشریح کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | د لوست کتاب، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د هوا د ککړتیا انځورونه او عکسونه، په ټولګي کې د ننه فعالیت، که امکان ولري جغرافیایي، ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د زده کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضري اخیستل، د ټولګي بهر فعالیت کتل، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–څنګه د ښار د هوا دککړتیا مخنیوی کولی شو؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| وخت په دقيقو | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | ۷–د ښوونکي د تدريس فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | –د نوي لوست سرليک  ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د ښار د هوا دککړتيا په هکله نظر څرګندوي<br>–د ښار د هوا د ساتنې په باره له ښوونکي سره بحث کوي.<br>–د لوست مهمو ټکو ته پاملرنه کوي.<br>–د ښوونکي توضيح ته غوږ نيسي<br>–د ټولګي په ډله ييز فعالیت کې برخه اخلي او د ډلې فعالیت د خپل استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې تشريح کوي.<br>–پوښتنوته ځواب وايي<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–د لوست لنډيز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت اجرا کوي. | –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټه خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د ښار د هوا دککړتيا په اړوند ځانګړې پوښتنې وکړئ.<br>–د ښار د هوا د ککړتيا په هکله بحث وکړئ<br>–د تختې پرمخ د لوست  مهم ټکي وليکئ.<br>–د ښار د هوا د ککړتيانوی لوست توضيح کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او د هغو فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضيح کړئ |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–هر ډول اضافي ماده چې هواته ننوځي، فزيکي، کيمياوي خواص او حياتي شرايط يې بدل کړي، د هوا ککړتيا بلل کيږي، د ماسټرپلان په خلاف د کابل د ښار بې اندازې پراختيا، د نفوسوزياتوالی، د ترانسپورټي وسايطو له حده زيات زياتوالی، په تيره بيا د زړو ميعاد ختم وسايطو تګ راتګ، د بې کيفيته تيلو او ګاز استعمال او نور ډير عوامل، لکه: د ربړ له سوزو لو څخه استفاده، په داشونو او حمامونوکې د پلاستيک او سوو مبلايلو سوزول، په زياتو کورونو، دوکانونو او دښارشاوخوا موسساتو کې د دغه موادو سوزول دښار د هوا دککړتيا سبب کيږي، دکاربن ډای اکسايد، کاربن مونو اکسايد، ککړې خاورې، صنعت، کرنه د ژوو سرې او ښارې صنايعو اړوند اضافي موادو اچول په نامناسبو ځايونوکې، دغه شان نورې ستونزې په مجموع کې د ښار د هوا او دکابل په ښار کې د استوګنې چاپيريال ککړوي.

۲–د هوا له ککړتيا څخه د مخنيوي له پاره بايد پاکوالی مراعات کړو اوله هغو شيانو نه چې د هوا د ککړتيا سبب ګرځي، کار وانخلو، خپل ښار چاپيريال پاک او سمسور وساتو او کثافاتونه په ټاکلو ځايونو کې واچوو.

۳–ککړه هوا د انسانانو او ژويو له پاره ډول ډول وژونکې ناروغۍ پيدا کوي.

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

هر ډول اضافي غازونه چې په هوا کې داخل شي، فزيکي، کيمياوي خواص او د هغې حياتي شرايط بدل کړي، د هوا ککړتيا ورته وايي. په بل عبارت د هوا د ککړتيا مهم عوامل له هغه لوګي څخه عبارت دي چې د سوزولو له ډول ډول موادونه پيدا شوي وي. جغرافيايي موقعيت، د اورښت کموالی، هر ډول انساني فعاليت، لکه د سرې اچولو د ځای زياتوالی. نامناسبه ټټی، د کاربن ډای اوکسايد، کاربن مونو اوکسايد توليدول، ککړې خاورې، د ژوو سرې د کرنې اړوند صنعت، ښاري صنايع په نامناسب ځای کې د ښار د هوا او د استوګنې د چاپيريال د ککړتيا سبب ګرځي.

## د اووه دیرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د زړو عراده جاتو زیاتوالی او د ښار د هوا ککړتیا | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–له زاړو موټرو او دښار د هوا لهککړتیا سره د زده کوونکو بلدتیا<br>ځانگړې موخې:<br>–زده کوونکیبه وپوهیږي چې زاړه موټرونه څنگه د هوا د ککړتیا سبب کیږي.<br>–د زړ و موټرو په ضررونو به وپوهیږي او نوروته به معلومات ورکړي.<br>–د ښار د ککړتیا په اړوند د زړو موټرو د زیاتوالي په مخنیوي به وپوهیږي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرگندونې او ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د ښار د هوا د ککړتیا انځورونه، عکسونه، که امکان ولري جغرافیایي، ویدیویي، تلویزوني فلمونه، د کمپیوټر سیلایگاني او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولگي کې د زده کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولگي بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، له نوي لوست سره د زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–آیا زاړه موټر د ښار د هوا په ککړتیا باندې څه اغیزه لري؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړېفعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د زړو موټرو او د ښار د هوا د ککړتیا په اړوند ځانګړې پوښتنې طرحهکړئ.<br>–د زړو موټرو زیاتوالی او د ښار د هوا د ککړتیاپه باره کې بحث وکړئ<br>–پر تختې د لوست مهم ټکیولیکئ.<br>–د زړو موټرو زیاتوالی او د ښار د هوا ککړتیا توضیح کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې دننه د هغوي فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د لوست د ارزونې پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د زړو موټرو زیاتوالي او د ښار د ککړتیا په باره کې نظر څرګندوي<br>–د زړو موټرو د زیاتوالي او د ښار دککړتیا په باره کې له محترم ښوونکي سره بحث کوي.<br>–دلوست مهمو ټکو ته پاملرنه کوي.<br>–د ښوونکيڅرګندونو ته غوږ نیسي<br>–په ټولګي کې د ننه پهډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپل استازې په واسطه یې نتیجه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې روښانه کوي.<br>–خپلې پوښتنې او مهم ټکي طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځواب وایي<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت اجرا کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–زاړه موټرونه زیات په وروسته پاتې او بېوزلو هېوادونو کې کارول کیږي، ځکه چې بیه یې ارزانه دي. په عمومي توګه نقلیه وسایط له یوېخوا د اړتیاوو د لرې کولو له پاره په کاریږي، له بلې خوا لوګی او هغه ګازونه چې ترې وځي، د هوا د ککړتیا سبب ګرځي.

۲–پټرول او سوي موبلایل د سلفر ډای اکساید so۲، نایتروجن ډای اکساید No۲، کاربن مونو اوکساید $co_2$، د Pm–Pm۲ مخصوصې ماده لري.(کوچني ذره بیني ماده(خېروي)

۳–د زړو اونوو موټرونو توپیر د هوا د ککړتیا په لحاظ زیات دی چې زاړه موټرونه زیات لوګی او ګازونه خارجوي، هوا ککړوي، خو نوي موټرونه پر مختللي تخنیک او عصري مدرنې پرزې لري چې ټول خلک ورنه زیات کار اخلي او هوا نه ککړوي

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

زاړه موټرونه زیاتره مخ په پرمختیا او بېوزلو هېوادونو کې کارول کیږي، ځکه چې بیه یې ارزانه دي، معمولاً نقلیه وسایط که له یوې خوا زموږ د اړتیاوو د لرې کولو له پاره په کاریږي، له بلې خوا لوګی او هغه ګازونه چې ورنه خارجیږي، د هوا د ککړتیا سبب ګرځي چې موږ یې تنفس کوو. نقلیه زاړه وسایط په عمومي توګه د کار اخیستلو وړ نه دي، په بېوزلو هېوادونوکې له هغو زیات کار اخیستل کیږي، لوګی او هغه بې اسونه چې ترې وځي، فضا زهرجنه کوي، زموږ د تنفس، روغتیا او ژوند له پاره ضرر رسوي، په مجموع کې د انسان ژوند له ستونزو سره مخامخ کوي. زاړه موټرونه چې پخوا زیات استعمال شوي وي زیات عوارض او د تیلو اومبلایلو زیات لګښت لري، نو لکه چې نوي موټر تولید شول، د زړو موټرو ځای یې ونیوه، په اوسني وخت کې له نوو موټرونو زیاته استفاده کیږي او ټول خلک له هغو کار اخلي، زاړو موټرو په بازار کې هم خپل ارزښت له لاسه ورکړیدی.

## د اته دېرشم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د واټونو او کوڅو خرابي او ککړتيا | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د واټونو اوکوڅو له خرابۍ او د واټونو له ککړتيا سره به زده کوونکي بلد شي.<br>ځانگړې موخې:<br>–زده‌کوونکي به د واټونو او کوڅو خرابي او ککړتيا وپيژني<br>–د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتيا له عواملو سره به بلد شي<br>–د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتيا څخه دساتلولنډې لارې به وپيژني او نورروته به يې روښانه کړي | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرگندونې ډله ييز کار، خبرې پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، د ښوونکي لارښود کتاب، د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتيا انځورونه، که امکان ولري جغرافيايي، ويديويي، تلويزيوني فلمونه او دکمپيوټرسي ډيگانېاو انټرنټ | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه، عملي کار. | |
| ۶–په ټولگي کې د زده‌کړې او تدريس لومړنۍ فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي کنټرول، حاضرۍ اخيستل، له ټولگي بهر فعاليت، د تېر لوست ارزونه، له نوي لوست سره د زاړه اړيکه رامنځ ته کول<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–د واټونو او کوڅو خرابي او ککړتيا د خلکو له پاره څه ستونزې پيدا کوي؟ | وخت په دقيقو<br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتیا په باب ځانګړي پوښتنې طرحه کړئ.<br>–د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتیا په هکله بحث وکړئ<br>–پر تختې د لوست مهم ټکیولیکئ.<br>–ز ده کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې د هغو فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتیا په هکله نظر څرګندوي<br>–د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتیا په باره کې له ښوونکي سره یو ځای بحث کوي.<br>–د لوست مهمو ټکوته پاملرنه وکړي<br>–په ټولګي کې د ننه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ټولګي د استازې پواسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي په مخکې لولي<br>–مهم ټکي او خپلې پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځواب وایي<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعالیت اجرا کوي. | ۳۵<br>دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–په وروسته پاتې او مخ پرودې هېوادونو کې واټونه او کوڅې عموماً خراب، خامې او په خاورو لړلي وي. ځکه تر اوسه زیاتره واټونه او کوڅې قیر او اسفالت شوی نه دي، د واټونو په غاړه د اوبو تللو ویالې نه لري، په خامو واټونو کې دوړې، لښتي او کندې چې بې اندازې ککړتیا لري، د مرضونو د خپریدو سبب ګرځي چې همدغه عوامل د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتیا سبب کیږي.

۲–د واټونو او کوڅو د خرابۍ او ککړتیا د مخنیوي له پاره باید پاکوالي مراعات کړو، د ونوا ینبودل هم د واټونو او کوڅو په پاکوالي او نظافت زیاته اغیزه لري، چاپیریال تر یوې اندازې له دوړو او ککړتیا څخه ساتي، ځکه چې په سمسور او زرغون چاپیریال کې دوړي نه وي. د ښار شاوخوا واټونه او کوڅې ناولي خامې او خاورینې وي، په اقلیمي وضعې هم اغیزه لري، د واورې او باران د اوربښت په وخت کې ټرانسپورټ له زیاتو ستونزو سره مخامخ کیږي.

۳–ښاروالي دنده لري چېد واټونو، سړکونو او کوڅو بیارغاونېته پاملرنه وکړي او په کیفیت لرونکو موادو او فني اشخاصو ټول واټونه او کوڅې بیا ورغوي، د ښار د ساحو زرغون کمربند بیرنی دی، د ماسټرپلان تطبیق د ښار په ټولو برخو کې حتمي دی او رسنۍ تل باید ښاریکلتور ښاریانوته تبلیغ کړي، په دې ترڅ کې د ښاروالي د تنظیفاتو برخه باید خپل مسوولیت هم وپیژني.

**۹–د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

د واټونو او کوڅو خرابي او ککړتیا زیاتره د نظافت دنه مرعات کولو له اغیزې رامنځ ته کیږي، په وروسته پاتې اومخ په پراختیا هېوادونو کې د ښاروالي پراخیتا نا منظمه ده، نو واټونه او کوڅې له پلان سره سمون نه لري. د کلو او بانډو خلک زیاتره ښارونو ته مهاجر شوي او له ښاري فرهنگ سره له بلدتیا پرته ژوند کوي، نو د کوڅو او واټونو ککړتیا او دوړن والی زیاتیږي، د ښار په کلو کې کورونه زیاتره خامې او له ښاري نقشو پرته دي. کوڅې هم خامې او په دوړو ککړې دي او دشګو په ځاي کوڅې په خاورو لړلي چې کوڅې یې زیاتې غیر صحیکوي او مناسبې ټیټی شتون نه لري، چې ککړې اوبه له ساحې نه ووځي. په ټولو واټونو او کوڅو کې پلان شوي کانالیزاسیون شتون نه لري، چې د واټونو او کوڅو د ککړتیا مخه ونیسي، د ښاري فرهنگ نه شتون هم د واټونو او کوڅو د خرابیاو ککړتیا سبب گرځي، ځکه چې تر اوسه د ټولنې ټول افراد په واټونو او کوڅو کې نظافت نه مراعاتوي او ټول ځیزونه چې وغواړي په کې اچوي، واټونهکوڅې چټلیږي.

## د نهه دېرشم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | زلزله | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د زلزلې په اړه به بشپړه معلومات تر لاسه کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–زده‌کوونکي به وپوهېږي چې زلزله څه شی ده او څنګه واقع کیږي<br>–د زلزلې عوامل به وپیژني او نوروته به یې معلومات ورکړي<br>–د هغو سیمو په اړه به معلومات پیدا کړي چې زلزلې په کې کیږي<br>–د زلزلو څپې به رسم کړای شي | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که امکان ولري له جغرافیایي، ویدیویي، او تلویزیوني فلمونو د کمپیوټر له سي ډي ګانو او انټرنېټ څخه کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، عملي کار، د ښوونکي د ارزونې کتابچه | |
| ۶–په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، د ټولګي بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، د زاړه او نوي لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا د زلزلې په هکله معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –د نوي لوست سرلیک په تختې ولیکئ.<br>–د پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د زلزلې په باب ځانګړې پوښتنې وکړئ او د لوست مهم ټکي پر تختې ولیکئ.<br>–طبیعي نقشې زلزله او هغه سیمې چې زلزلې په کې کیږي، توضیح کړئ.<br>–د نوي لوست پوښتنې طرحه کړئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې د ننه د هغوي فعالیت وټاکئ<br>–په ټولګي کې د ننه د نوي لوست د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوی لوست سرلیک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د زلزلې په هکله نظر څرګندوي<br>–د لوست مهم ټکي لیکي<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او د نوي لوست توضیح ته غوږ نیسي.<br>–دټولګیپه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د استازې پواسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي په مخکې وړاندې کوي.<br>–خپلې پوښتنې او مهم ټکي طرحه کوي.<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–د ټولګي د ننه فعالیت اجرا کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–زلزله د ځمکې د سطحې له خفیف او یا شدید لړزیدلو څخه عبارت دی چې په سیمه ییزه توګه واقع کیږي، څپې یې اطرافو ته خپریږي، شدت او دوام یې مالي او ځاني خطرونه لري

۲–تکتونیکي زلزلې د ځمکې د مخ له پلیټونو سره مستقیم ارتباط لري، د ځمکې مخ له یو شیمر کوچنیو او لویو پلیټونونه جوړشویدي، چې د توازن د لاسه ورکولو په وخت کې یو پلیټ د بل پلیټ په وړاندې حرکت کوي، په هماغه سیمه کې زلزله رامنځ ته کوي. د ځمکې ستر پلیټونه د ایروشیا، هند، استرالیا، د افریقې، شمالي امریکې، د جنوبي امریکې، انتارکتیکا له پلیټ، څو نورو وړو پلیټونو څخه عبارت دي. هند او ایرو شیا د پلیټونوحرکتونه په بدخشان، چترال او تاجکستان کې د بېلابیلو زلزلو سبب کیږي.

۳–اورغور ځونکي زلزلې زیاتره د مدیترانې دسمندرګي د وزو سیسلي په ساحه کې، د آسیا په ختیځو ساحلونو او د امریکا په لویدیځو غاړ وکې د دغو سیمو د اور غورځوونکوزلزلو مهم مثالونه ګڼل کیږي، چې په جاپان، لرې ختیځ، کلیفورنیا او د امریکې په لویدیځوغاړو کې سختې او یا خفیفې زلزلې رامنځ ته کوي.

**۹-د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

زلزله په عمومي توګه درې علته لري، لکه: تکتونيکي، د اورغورځوونکي علت، پلوتونيکي عامل. تکتونيکي عامل يې د ځمکې پر مخ له مختلفو پليټو سره مستقيمه اړيکه لري.

اور غورځوونکي عامل يې د وزو د سسلې اور غورځوونکي ساحه په مديترانه کې، د اسيا ختيځې غاړې او د امريکي لويديځې غاړې اورغورځوونکي، د زلزلو د پيدا کېدلو مهم مثالونه د غه سيمېګڼل کيږي.

پلوتونيک زلزلې په اصل کې د مګما د پورتنۍ برخې د حرکتونو فشار دی چې د ځينو ځايونو د تودوخې د ګرځېدو اغېزې له زلزلې سره مخامخ کيږي.

خلک بايد هغه له پامه و نه غورځوي، ځکه چې له امله يې ځاني او مالي خطرونه رامنځ ته کيږي، د انسانانو د له منځه تلو او ودانيو د ړنګېدو لامل ګرځي. که څه هم د زلزلو وړ اندوينه (پيشبيني) نه شي کړای، خو په حيواناتو او ځنګلونو کې ځينې نا څاپي پېښې تر سترګو کيږي، له دې امله د زلزلې د معلومولو، سنجولو او پېژندلو مرکزونه په ځنګلو کې جوړيږي او د زلزلې د ثبتولو او سنجولو آلې په ځنګلونو کې ځای پر ځای کوي. چې د حيواناتو نا څاپي او غير مترقبه اوازونه د هغه په وسيله اوري او د زلزلې د پيښدو په فکر کې لويږي، زلزلې د بندونو او نهرونو د ورانيدو لامل ګرځي همدارنګه لويې او کوچنۍ ودانۍ له منځه وړي، بې له شکه د انسانانو د مرګ ژوبلې سبب کيږي. لکه چې د ايران دبم په ښار کې زلزله او يا هم هغه زلزله چې د مکسيکو په ښارکې پيښه شوه. يا هغه زلزله چې په ۱۷۰۰م کال کې په پغمان کې وشوه او يا هم هغه لويه زلزله چې په کليفورنيا کې رامنځ ته شوه، چې د ډيرو ودانيو د ړنګېدو سبب، د ډيرو ځاني او مالي زيانونو لامل شوه، له دې امله بايد انسانان هڅه وکړي، چې د زلزلو زيانونه راټيټ او ځانونه په امن کې وساتي.

# د ځلوېښتم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د زلزلې خطرونه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې مهارتي، او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د زلزلې د خطرونو په اړه به بشپړ معلومات تر لاسه کوي.<br>ځانګړې موخې:<br>–زده‌کوونکيبه وپوهيږي چې زلزله څه خطرونه لري<br>–د زلزلې په خطرونو به پوه شي<br>–د زلزلې د کيدلو له پاره پر وخت به لازمو او وقايوي تدبيرونو وپوهيږي او نوروته به معلومات ورکول. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرګندونې او ګروپي کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، د ښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه او عکسونه، که امکان ولري د جغرافيايي، ويډيويي، تلويزيوني فلمونه او د کمپيوټر سيډي ګانياو انټرنټ وکاروي. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د زده‌کړې او تدريس لومړني فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظيمول، حاضری اخيستل، له ټولګي بهر فعاليت، دتېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره د زاړه اړيکې رامنځ ته کول<br>–هځوونکي پوښتنه:<br>–ايا پوهيږئ چې زلزله څه خطرونه لري؟ | وخت په دقيقو<br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –د تختې پرمخ د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پټې خولې مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د زلزلې د خطرونو په اړوندځانګړي پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست مهم ټکیولیکئ.<br>–د زلزلې خطرونه توضیح کړئ<br>–د نوي لوست پوښتنې طرحه کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ د هغو د بحث وړ موضوع څرګنده کړئ<br>–د ټولګي د ننه فعالیت څارنه وکړئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د لوست ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د نوي لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د زلزلې د خطرونو په باره کې نظر څرګندوي.<br>–د لوست مهم ټکیلیکي<br>–د محترم ښوونکي توضیح ته غوږ نیسي<br>–پوښتنو ته ځواب وایي<br>–د ټولګي پهډله ییز فعالیت کې فعاله برخه اخلي او په ټاکل شوي موضوع بحث کوي او وروسته د ډلې استازي د بحث نتیجه نوروته وایي<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د نوي لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–څنګه چې زموږ د استو ګنې ځاي د کابل ښار دي، نو په عمومي توګه دکابل په ښارکې د نفوسو ګڼه ګوڼه زیاته ده.

۲–د زلزلې خطرونه له دوو لحاظو کمزوري کیدای شي، د کورونو فزیکي او انجنیري جوړښت.

۴–زړې ودانې، چې له لرګیو، خښتو یا پخسې څخه جوړې شوي وي، زیات تاوان وررسیږي.

۳–د ودانیو په اسکلیت کې ودانۍ باید کانکریت چې له اوسپینې، ګاډر او سیمنټو څخه وي، کلکې ستنې دې ورکړل شي څو ودانۍ ته ارتجاعیت او مقاومت ورکړای شي.

زړې ودانۍ چې له خښتنو او پخسې نه جوړې شوې وي، تاوان ژر وررسیږي، هغو ته دې استنادې او کلکې ستنې ورکړلی شي، د ودانیو د ټینګښت ستنې دې ورکړل شي چې د ودانۍ د ټینګښت سطحه لوړوي، ودانۍ په هغو سیمو کې چې زیاتې زلزلې په کې کیږي، د غرونو په لمنه او نرمو رسوبي ځمکو کې جوړې نه شي.

درسي او د اجتماعیاتو ټولګي په تعلیمي ځایونو کې باید په هغو کوټو کې چې ټینګښت ونه لري، ځای پر ځای نه شي.

**۹-د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

په زلزلو کې د کورونو ړنګېدل، او اورلګېدل، ان چې د ځمکې پرمخ سوري او درزونه پیدا کیږي، نو له دې امله د زلزلې په وخت کې اخطارونه او لارښوونې حتمې وي، له دې کبله خلکو او د پوهنې زده‌کوونکوته خبرتیا د دولتي موسسو ډله ییزه دنده ګڼل کیږي، څو خلک د زلزلې د خطرونو له اساسي مسایلو او د تدبیرونو د نیولو له پاره چمتو اوسي.

د زلزلې زیانونه د هغې په کچه پورې اړه لري، هغه زلزلې چې د ریختر په (۷-۹) درجو په کچه پېښیږي، ودانۍ له منځه وړي، د لارو او سړکونو بنې ته بدلون ورکوي، همدارنګه د ریل ګاډي لیکه هم ورانوي. د زلزلې د پېښیدو له امله کله چې د ودانیو له کړکیو څخه ښیښې رالویږي، د ځینو خلکو د ټپیکیدو او ستونزو لامل ګرځي، کچیرې څوک د زلزلې په پېښو کې را ایسار شول، خپل ژوند له لاسه ورکوي، باید دې ډول پېښو د مخنیوي لپاره دولت اړین ګامونه پورته کړي، په ښوونځیو او د ټولیدو په نورو ځایونو کې د زلزلې خطر ته پاملرنه وکړي، د زلزلې خطر په مستقیم او غیر مستقیم ډول احساسیږي، په مستقیم ډول د ودانیو رالویدل د اوسیدونکو له منځه تللو سبب کیږي، په غیر مستقیم ډول د زلزلې زیانونه، لکه: د سیندونو د تګ لوري بدلون، د کانالونو ورانیدل او د ځمکې ماتیدل (شکست) په غیر مستقیم ډول انسانان زیانمنوي.

## د یوڅلویښتم لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت (یو درسي ساعت)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د زلزلې د اندازې سنجول | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د زلزلې د اندازې د سنجولو په اړه بهمعلومات تر لاسه کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–زده‌کوونکیبه د زلزلې د اندازې په سنجولو باندې وپوهیږي.<br>–د اندازې اخیستلو په اله به د زلزلې سختوالي پیدا کړای شي<br>–د زلزلې سختوالي او تراکم له ۱–۹ اندازې پورې مینه پیدا کړي | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه او عکسونه، د امکان په صورت کې له جغرافیایي، ویدیویي تلویزیوني فلمونو او د کمپیوټر له سي ډ ي ګانو او انټرنټ کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د نښه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولګي څخه د بهر فعالیت کتل، د تېر لوست ارزونه او له نوي لوست سره د زاړه لوست ترمنځ اړیکه رامنځ ته کول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا پوهیږئ چې د زلزلې سختوالي څنګه سنجول کیږي؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړېفعالیتونه | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د زلزلې د اندازې سنجولو په باب ځانګړې پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست مهم ټکیولیکئ.<br>–نوی لوست او د زلزلې د اندازې سنجول توضیح کړئ<br>–له نوي لوست نه پوښتنې طرحه کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې د ننه د هغو فعالیت وتاکئ<br>–په ټولګي کې د ننه فعالیت ځارنه وکړئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د لوست د ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د زلزلې د اندازې سنجولو په هکله نظر څرګندوي<br>–د لوست مهم ټکي لیکي<br>–د ښوونکي توضیح ته ښه غوږ نیسي<br>–د ټولګي په ډله ییز فعالیت کې فعاله برخه اخلیاو د خپلې ډلې د استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–د لوست مهم ټکي او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د لوست ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیز وړاندې کوي.<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت اجرا کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–په دریمه درجه زلزله کې د ودانۍ خوځښت احساسیږي او ځوړند شیان ښه لړزیږي

۲–اور ګاډی د ریختر په نهو درجه کې له ځایه بې ځایه کیږي

۳–د زلزلې تشخیص جرمني عالم د ریختر په ټاکلي مقیاس وکړ.

**۹– د ښوونکي له پاره اضافي معلومات**

هر شي د اندازه کولویو واحد لري. دساري په توګه د وزن د اندازه کولو واحد کیلو ګرام، من او یا پونډ دی، د اوږ دوالي، د اندازه کولو واحد له متر، فټ او یا میل څخه عبارت دی، له دې امله قوه سختوالی او یا د زلزلې دلړزو ځواک په مرکالي او ریختر اندازه کیږي، د زلزلې د لړزولو او ټکانونو له اغیزې په کورونو کې د ننه شیان ډېر سخت لړزیږي.

د زلزلې کچه د تخنیکي وسایلو (ریختر) په واسطه محاسبه کیږي. هغه زلزلې چې د ریختر تر (۱– ۳) درجو پوري رامنځ ته شوي وي، خفیفي زلزلې، که د ریختر د (۴– ٦) درجو په کچه وي، منځنۍ زلزلې او د ریختر له (۵– ۹) درجو په کچه زلزلې سختي زلزلې ګڼل کیږي. دا وسیلې کله کله ساده او ابتدایي جوړښت لري او کله هم اتوماتې برقي وسیلي وي، چې هره یوه یې د «زلزله سنج» په نوم یادیږي.

ریختر د فزیک نامتو عالم و، که د زلزلې شدت او درجې تثبیت کړې، د زلزلې دغه سنجش د دې په نوم نومول کیږي، دا فزیکي آله پیچلی جوړښت لري، چې د زلزلې د تکانونو پر وخت لړزیږي، که چیري دا لړزیدنه د عقربې په واسط د (۱– ۹)لوحې پر مخ حرکت وکړي، هغه د سیسمو ګرام په نوم یادیږي او که د زلزلې دا لړزیدنه د کاغذ پر مخ ثبت شي، نو سیسمو ګراف یې بولې، خو په اوسنو استیشنونو کې د زلزلې اندازه کوونکي او سنجوونکي اتومات وسایل ځاي پر ځاي شوي دي، چې د زلزلې د سختوالي کچه، وخت او دقیقه نیټه سمت ته راځي او د هغه په منځ کې ریکارد کیږي.

# د دوه څلویښتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د هېواد زلزله کیدونکي ساحې | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د هېواد د زلزله کیدونکو حوزو په اړه به معلومات پیدا کړي<br>ځانگړې موخې:<br>–زده‌کوونکي به د هېواد د زلزلېحوزېپه نقشه کې وښیي.<br>–د زلزلې د شدت او کمزورتیا حوزېبه پیژني<br>–په مختلفو حوزوکې به د زلزلو دشدت په باره کې پوهه ولري او نوروته به یې معلومات ورکړای شي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرگندونې او ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د لوست اړوند انځورونه، که امکان ولري جغرافیایي، ویدیویي، تلویزیوني فلمونو، د کمپیوټر له سي ډي گانو او انټرنټ کار اخیستل. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولگي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، حاضرۍ اخیستل، له ټولگي بهر فعالیت، د تېرلوست ارزونه، له نوي لوست سره د زاړه لوست اړیکه رامنځ ته کول.<br>–انگیزوي پوښتنې:<br>–ایا د هېواد د زلزله کیدونکو حوزو په باره کې خبرتیا لري؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–د نوي لوست په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د هېواد د زلزله کيدونکو حوزو په اړوند ځانګړې پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست مهم ټکيوليکئ.<br>–د طبيعي نقشې پرمخ د هېواد زلزله کيدونکې حوزې توضيح کړئ.<br>–له نوي لوست څخه پوښتنې طرحه کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او په ټولګي کې د هغو فعاليت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د نوي لوست د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>–د نوي لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعاليت توضيح کړئ | –د نوي لوست سرليک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د هېواد د زلزله کيدونکو حوزو په باره کې نظر څرګندوي<br>–د لوست مهم ټکيليکي<br>–نقشې تهګوري د لوست توضيح ته غوږ نيسي<br>–پوښتنو ته ځواب وايي<br>–د ټولګي پهډله ييز فعاليت کې برخه اخلي د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي په مخکې د خپل استازې پواسطه وړاندې کوي.<br>–د لوست مهم ټکي او خپلې پوښتنې طرحه کوي.<br>–د نوي لوست د ارزونې پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>–د نوي لوست لنډيز ته ځيرېږي چې پوهه ومومي<br>–له ټولګي څخه بهر فعاليت يادداشت کوي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱– (د) سم دی

۲–(۳) سم دی

۳–د افغانستان د ماتوشوو ځايونو (شکستګي ها) مهم خطونه د بدخشان، چمن او هرات له ماتو خطونو څخه عبارت دي

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د افغانستان زلزله کيدونکي مرکزونه په شمال ختيځ کې ډير زيات دي او د جنوب لويديځ په لور د زلزلې شدت ورو ورو کميږي، د پامير، واخان، فيض اباد، تخار، خان اباد، دکونړونو شمال او نورستان په ساحو کې د زلزلې خوځښت او ټکانونه سخت دي، هرکال څو ځلې رامنځ ته کيږي، له دې سره يوځای، موضعي خوځښتونه، د ځمکې پرمخ هم زياتې ماتې رامنځ ته کوي چې زيات شميريې ننګرهار، بدخشان، کابل او غزني کې شتون لري.

په هېواد کې د زلزلو سيمې په درو برخو کې کولی شو، مطالعه او وڅيړو:

۱– د هيواد په شمال ختيځو ولايتونو، لکه: بدخشان، تخار، د پنجشير شمالي برخي، د لغمان ولايت شمالي سيمې او د کنړونو ولايت شمالي برخې د ډيرو زيانمنو سيمو په نوم يادولي شو. چې په هيواد کې له زلزلې څخه يوه ستره اغيزمنه سيمه جوړوي. خو له شمال ختيځو ولايتونو څخه د سهيل لوديځو او لوديځو ولايتونو پر لورې د زلزلې د سختوالي او شدت کچه کميږي، ځکه کله چې له بدخشان څخه د زلزلې موجونه پيل کيږي. په شمال ختيځو ولايتونو کې د زلزلې لوړه

کچه احساسیږي، خو د بلخ، شبرغان، اندخوي، هرات ولایتونه، د قندهار، هرات، ارزګان او زابل شمالي برخې تقریبا د زلزلې منځنۍ سیمې جوړوي.

خو د هیواد په سهیل کې لکه: د قندهار، هلمند او نیمروز سهیلي سیمو کې یا د زلزلې د سختوالي کچه لږه احساسیږي او یا هم په دې سیمو کې زلزله نه کیږي، په دې ترتیب د زلزلو د پیښېدو درې سیمې شتون لري، چې له شمال ختیځ پیل، په سهیل ختیځو ولایتونو کې په منځنۍ کچه زلزلې پېښیږي، د هیواد په سهیل لویدیځو ولایتونو او سیمو کې زلزله نه احساسیږي.

## د درې څلویښتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | سیلاب | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–زده کوونکي به سیلاب وپیژني.<br>ځانګړې موخې:<br>–زده‌کوونکي به په دې پوه شي چې سیلاب څنګه رامنځ ته کیږي<br>–د سیلاب ډولونه به وپیژني<br>–د سیلاب په خطرونو او زیانونو به پوه شي<br>–د سیلاب له آفتونو څخه د خلاصون په باره کې به معلومات تر لاسه کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي، ویدیویي، او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډي ګانې او انټرنټ | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه | سلام اچول روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د سوبتیا کنټرول، له ټولګي څخه د وتلي فعالیت څارنه، د تېر لوست ارزونه او له زوړ لوست سره د نوي لوست اړیکې | وخت په دقیقو |
| | –هڅوونکي پوښتنه.<br>–آیا د سیلاب په هکله معلومات لرئ؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې باندې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>– نوي لوست په پټه خوله ولولئ.<br>–د سیلاب په باره کې پوښتنې وکړئ.<br>–پر تخته باندې د لوست مهم او غوره ټکیولیکئ، د نوي لوست په اړه څرګندونې وکړئ<br>–د نوي لوست په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي دننه فعالیت ورته وټاکئ<br>–د ټولګي د ننه فعالیتونه وڅارئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د نوي لوست ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د نوي لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله خوله لولي<br>–د سیلاب په اړه نظر څرګندوي<br>–د لوست د مهمو او غوره ټکو په ګوته کول او په کتابچو کې لیکل<br>–د نوي لوست څرګندولوته په غور غوږ نیسي<br>–د نوي لوست پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>–په ډله ییزو فعالیتونو کې کارنده برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونو د ټولګي مخکې د استازې په واسطه وړاندې کوي.<br>–د ښوونکي لارښوونو ته پاملرنه کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې وايي<br>–د لوست د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د نوي لوست لنډیز وړاندې کوي.<br>–له ټولګي څخه وتلي فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته سم ځواب غوره کړي:**

**۱**–(د) سم دی

**۲**–( الف) سم دی

**۳**–( ج) سم دی

**۴**–(الف) سم دي

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

سیلاب یا سیلاو د باران د اوبو هغه بهیردی چې د باران د اوریدو له امله په نا څاپي ډول د غرونو له درو څخه راځي، په بل عبارت د عادي سطحې د اوبو د حوزو لوړوالی او بهیر چې په ډیره تېزی بهیږي، پټي او ځمکې وړي او خرابوي یې، سیلاب یا سیلاو بلل کیږي.

سیلاب د اوبو هغه طوفان دی، چې په سیندونو کې د اوبو د کچې د لوړوالي له امله رامنځ ته کیږي، دا سیلابونه ډیر په پسرلي کې رامنځ ته کیږي، ځکه چې په دې وخت د غرونو واورې ویلې کیږي او د پسرلي موسمي بارانونه په سیندونو کې د اوبو د کچې د لوړوالي لامل ګرځي، د سیلاب د راوتلو پر وخت نه یوازې کرنیزو ځمکو ته زیان رسیږي، بلکې کلي او بانډې هم له منځه وړي، په دې اړوند د بیلګې په ډول له دوو سیمو یادونه کوو:

۱– هغه ویجاړونکي سیلاب چې په ۱۳۲۰ هجري شمسي کال په کوهدامن کې راوتلي و، ډېر عمومي سرکونه یې له منځه یووړل، ډېر کسان پکې مړه شول ډېر کوچیان او د کوچیانو ډیرې رمې یې له منځه یووړې. دې سیلاب په دې سیمه کې ډیرې زیاتې ستونزې او زیانونه رامنځ ته کړل، کرنیزو ځمکو او کلا ګانو د خوړ بڼه غوره کړه.

په دې اړوند دویمه بیلګه د امو سیند د اوبو د کچې لوړوالي دی، چې د پسرلي په لومړیو وختونو کې یې د اوبو کچه لوړیږي، له درقد څخه ترخماب پورې یې د شورتیپې، قرقین، حیرتانو سیمو او ټول هغه کلي چې د آمو سیند پر غاړو پراته دي له یوې مخې له منځه وړي، د دې سیمو ځمکوالو او بزګرانو ته ډېر زیانونه واړوي.

# د څلورڅلوېښتم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د سيلاب خطرونه اود هغه د مخنيوي لارې | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې مهارتي، او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د سيلاب له خطرونو سره بشپړه بلدتيا او دهغه د مخنيوي لارې به وومومي<br>ځانګړې موخې:<br>–زده‌کوونکي به د سيلاب د خطرونو او دهغه د مخنيوي په لارو پوه شي او نوروته به يې ووايي<br>–د سيلاب په خطرونو به پوه شي<br>–د سيلاب مستقيم او غير مستقيم خطرونه به وپيژني او په ژوند کې به ورته پاملرنه ولري. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرګندونې او ډله ييز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، ښوونکي د لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافيايي، ويديويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سېټ‌ې ګانې او انټرنټ | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د زده‌کړې او تدريس لومړني فعاليتونه | سلام اچول روغبړ، د ټولګي تنظيمول، د سوبتيا کنټرول، له ټولګي بهر فعاليت کتل، د تېر لوست ارزونه، د زوړ او نوي لوست ترمنځ د اړيکې رامنځ ته کول.<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–د سيلاب د خطرونو او له هغه سره د مقابلې د لارو په باره کې څه پوهيږئ ؟ | وخت په دقيقو<br>۱۰دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–دنوي لوست  په پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د سیلاب د خطرونو او له هغه سره د مقابلې پوښتنې وکړئ.<br>–پر تختې باندې د نوي لوست مهم او غوره ټکي ولیکئ<br>–د کتاب د انځورونو او نقشې له مخې د سیلاب له خطرونو او د هغو د مخنیوي د لارې څرګندولو سپارښتنه وکړئ.<br>–له نوي لوست څخه پوښتنېوکړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي د ننه فعالیتونه یې وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د نوي لوست د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیتونه څرګند کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله لولي<br>–د سیلاب د خطرونو او له هغو سره د مقابلې په باره کې د نظر څرګندول.<br>–د لوست مهم او غوره ټکي د تختې له مخې لیکي<br>–د لوست څرګندولوته په غور سره غوږ نیسي، د کتاب انځورونو او نقشې ته ځیر شي او د خطرونو په مخنیوي یې ځان پوه کوي.<br>–د نوي لوست پوښتنو ته په غور سره ځواب ورکوي.<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې ونډه اخلي او د ډلې نظرد ښوونکي په لارښوونه د استازې په واسطه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې وایي<br>–د نوي لوست ارزونې په اړوند پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>–د نوي لوست لنډیزته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–د سیلاب په کنټرولو کې معیاري استحکامونه رول لري، په تیره هغه استحکامونه چې معیاري توکي پکې کارول شوي وي، د سیلابونو په مخنیوي کې ډېر مقاومتکوي

۲–عملیاتي او کنترولي ډلې.

۳–(د) سم دی.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د سیلاب خطرونه په دوه ډوله دي، مستقیم خطرونه او نا مستقیم خطرونه، په مستقیموخطرونو کې د زراعتي، کورونو، باغونو، ځنګلونو، ترانسپورتي لارو، هغه توکي او وسیلې چې د سیلاب په سیمه کې د حیواناتو رمې او یا انسانان، په تیره کوچیان چې د سیلاب په تګلاره کې وي، تخریبیږي، کله نا کله ژوند له لاسه ورکوي او له منځه ځي.

د سیلاب په نامستقیمو غیر مستقیمو خطرونو کې ترافیکي بهیر له  خنډ سره مخ کیږي، خلکو ته روحي تکلیفونه او رواني نا ارامي پیدا کوي، د لاسي خرڅلاو کارونه خرابوي، ورځني چارې ځنډوي او په سیلابي حوزو کې د کارګرانو عاید له منځه وړي.

سونامي ډوله توپانونه اقتصادي، ټولنیز اودولتي فعالیتونه په ټولیزه توګه له خنډونو سره مخامخ کوي چې د جاپان سونامي د دې ډوله زیانونو ښه بیلګه ده. د دې ډول سونامي سیلابونو زیانونه له ملیاردونو ډالرو څخه هم ډیریږي.

## د پنځه څلویښتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | اورغورځوونکي(آتشفشان) | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې مهارتي، او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کوي.<br>–عمومي (موخې)<br>–اورشیندونکي سرهبه په بشپړه توگه بلد شي.<br>ځانگړې موخې:<br>–زده‌کوونکي به د اورشیندونکو په اړه معلومات تر لاسه کړي<br>اورشیندونکي سیمې به په نقشې کې وټاکلی شي.<br>–هغه توکې به وپیژنیچې اورشیندونکي یې د ځمکې سطحې ته راباسي نورروته به یې هم معلومات ورکړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرگندونپاو گروپیکار، خبرې، پوښتنپاو ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي او وسیلې | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي د لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه که شوني وي جغرافیایي، ویډیویي تلویزیوني فلمونه دکمپیوټر سیډي گانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگید ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولگي کې د زده‌کړې او تدریس لومړنې فعالیتونه: | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، دحاضرۍ کنټرول، له ټولگي څخه وتلی فعالیت، د تېر لوست ارزونه او له تیر لوست سره د نوي لوست د اړیکو ټینگول. | وخت په دقیقو |
| | – هڅوونکي پوښتنه:<br>ایا پوهیږئ چې اورشیندونکي څه شی دی او څنگه منځ ته راځي؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–د نوي لوست په پټه خوله د لوستلو سپارښته وکړئ.<br>–د اورشيندونکي په اړه ځانګړې پوښتنه وکړئ.<br>–پر تختې باندې د لوست غوره او مهم ټکيوليکئ.<br>–د نقشې او دکتاب د انځورونو له مخې اورشيندونکي څرګند کړئ<br>–له نوي لوست څخه پوښتنې وکړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او د ټولګي د ننه فعاليتونه يې وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>د ارزونې پوښتنې طرحه کړئ<br>–د نوي لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعاليتونه څرګند کړئ. | –د نوي لوست سرليک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي<br>–د اورشيندونکو په اړه د نظر څرګندول.<br>–د لوست مهم او غوره ټکي ليکي<br>–د لوست څرګندولوته غوږ نيسي<br>–د نوي لوست پوښتنوته ځواب وايي<br>–د ټولګي په ډله ييزو فعاليتونوکې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي په مخکې داستازې په واسطه وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې وايي<br>–د لوست د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډيز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعاليت ليکي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–اورشيندونکي د ځمکې د داخلي مواد و راپورته کېدل وي چې (مګما) ورته وايي چې د تودوخېد فشار او کيميايي تعاملونو او د فزيکي بدلونونو په اثر راپورته کيږي او د ځمکې د قشر د بدلون سبب ګرځي.

۲–متحرکه ويلې شوي اوري توکي چې د ښويېدونکي جسم غوندې حرکت کوي، د لاوا په نوم يادېږي، د لاوا د توکو رنګ سور، يا سپين او يا نارنجي وي، ټينګوالی يې د اوبلنې متحرکې ختې غوندې دی، د اوبو غوندې نرمه نه وي او د ټينګوالي په خاطرېې د حرکت چټکوالی نظر اوبو ته کم دی.

۳–د ايسلنډ اورشيندونکي د ۲۰۱۰ کال د اپريل په مياشت کې بيا فعال شول او د اروپايي هبوادونو د الوتکو په خطونو کې د خنډ او د سيمو د اوسيدونکو د بېځايه کېدو او د هوا د ککړتيا سبب شول.

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اورشيدوونکي مواد چې په ډېر زياد فشار د ځمکې له داخلي طبقو څخه راپورته کيږي، کله په وچو طبقو کې مخروطي ډوله غونډۍ جوړوي او وروسته په ډا ر وونکي حيرانوونکي اواز چاودنه کوي، لوګي، ډبرې ويلې شوي ټينګ توکي يې له خولې راوځي. څلورو لوروته غورځول کيږي. هر څه چې يې د لارې مخې ته راشي، د تودوخې پواسطه يې ويلې کوي د تودوخې درجه يې له ۳۰۰۰ سانتي ګريډ درجو څخه زياته وي، مانۍ، فلزونه، ځنګل، او ډ برې چې مخې ته يې وي، ټول نابوده وي، سوزوي يې او ويلې کوي يې.

اتشفشانونه د ځمکې د داخلې طبقو له فعاليت څخه رامنځ ته کيږي، چې د زياتې تودوخې له امله د ځمکې په هسته کې نيم ويلې شوي مواد د ځمکې د سطحې له کمزورو نقطو څخه د يوې چاودنې په بڼه خارجيږي، دا مواد له ټينګو او وژونکو ګازونو څخه عبارت دي، چې هوا ککړوي او د الوتکو په تګ را تګ خنډ او ځنډ رامنځ ته کوي، لکه چې څه موده پخوا په آيسلند کې د اتشفشان د لوګې له امله د الوتکو د الوتنو د دريدو سبب شو، د شمالي او لويديځې اروپا د هيوادونو هوايي ډګرونه يې له دې کبله څلور ورځې تړلي وو. له اتشفشان څخهله خارجو شوو موادو څخه يې يو لاوا دي، چې بيل بيل فلزات د اتشفشان له خولې څخه د مايع په ډول راوزي، چې د اوبو په شان پر نژدې ځمکو بهيږي، هر څه چې پر مخه ورځي، هغه له منځه وړي او ويلې کوي. دا ويلې شوي مواد د (لاوا) په نوم ياديږي، سر بيره پر دې د اتشفشان له خولې ډبرې الوځي، چې د نژدې سيمو د اوسيدونکو د زيان لامل ګرځي. د Pumice په نوم اتشفشاني ډبرې دي، چې اړوند غازونه له هغه را وزياو خلک له هغې څخه د پښو تيګو(سنګ پاى) د تېرو په ډول ګټه اخلي.

## د شپږ ځلويښتم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | په هېواد کې د پخوانيو اورشيندونکو حوزې | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–په هېواد کې به د پخوانيو اورشيندونکو حوزې بشپړې وپيژني.<br>ځانگړې موخې:<br>–زده‌کوونکي به په هېواد کې د پخوانيو اورشيندونکوسيمې په نقشې کې رسم کړي<br>–د پرې کامبرين د جيولوجي په لومړيو دوروکې به د اورشيندنکو پاتې شونې وپيژني.<br>–هغه اورشيندونکي توکېبه وپيژني چېله لاوا څخه منځ ته راځي او نوروته به يې معلومات وړاندې کړي. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرگندونې او ډله ييز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکي لارښود کتاب، لوست اړوند انځورونه که شوني وي جغرافيايي ويډيويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سي ډيگانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولگي کې د تدريس او زده‌کړې لومړنې فعاليتونه. | د سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظيمول، حاضرۍ اخستل، له ټولگي څخه بهر فعاليت، د تېر لوست ارزونه، د زوړاو نوي لوست د اړيکو ټينگول.<br>–هڅوونکي پوښتنه.<br>–ايا پوهيږئ چې په هېواد کې د پخوانيو اورشيندونکو حوزې کومې دي؟ | وخت په دقيقو<br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې‌فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د نوي لوست په پټه خوله د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–په هېواد کې د پخوانیو اورشیندونکو حوزو په اړه ځانګړې پوښتنې وکړئ<br>–پر تختې د نوي لوست غوره او مهم ټکیو لیکئ.<br>–د نقشو او انځورونو له مخې په هېواد کې پخوانی اورشیندونکو حوزې ځرګندې کړئ<br>–د نوي لوست په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د لوست د ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت ځرګند کړئ | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–په هېواد کې د پخوانیو اورشیندونکو حوزو په اړه د نظر ځرګندول.<br>–په تختېد لوست د مهمو او غوره ټکو لیکل.<br>–نقشې او انځورونو ته پاملرنه کوي د لوست تشریح ته په غور سره غوږ نیسي.<br>–د نوي لوست پوښتنوته ځواب ورکوي.<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې د استازې په واسطه وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې په ګوته کوي او پوښتنې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي.<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–د اورشیندونکو نښې په مخروطي ښهیو شمیر غونډۍ د بزلت، سکوریاګردې ډبرې چې ډیر کوچني کوچني سوري لري، لکه د پښود مښلو ډبره (سنګ پای) اوپو مایس ډوله ډبرې چې شفافې او کم وزنه دي. سر ببره پر دې د اورشیندونکو په ګاونډ کېد تودو اوبو چېنیې شتون لري.

۲–د افغانستان په سویل لویدیځ د نیمروز په ولایت کې دي

۳–د ګل کوه غر منظم مخروطي جوړښت لري

۴–د بلخپه ولایت کې د شفا چینه ده چې زیړ رنګه اوبه لري او د سلفرو د شتون نمایند ګي کوي، شته.

**۹– د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

په افغانستان کې فعاله اورشیندونکي نشته، خو ځنې نښې شته چې اورشیندونکې سیمې راپیژني. په دې ډول روښانه کوي چې د هندوکش د لړۍ د جوړښت په لومړۍ کې له تکتونیکي فعالیتونو سره موازي په افغانستان کې اورشیندونکي محدود فعالیتونه تر سره شوي دي.

د بابا د غره مخروطي بڼه په حقیقت کې اتشفشاني بڼه ده، په هغه سیمه کې د ژوند اړین منرالونه شتون لري. هغه نباتات او بوټي چې د بابا په غره کې زرغونیږي له ګټورو منرالونو ډک دی. بله اتشفشانې سیمه د ګودزیرې په سهیل کې شتون لري چې ځیني د بزلت ډبرې د دې سیمې د اورشیندولو فعالیتونو ښکارندوي دي، د غزني ولایت د ناور په سیمه کې هم د (برک...) ډبرې د اتشفشان د بزلت ډبرو له ډلې څخه دي. چې د بابا د غره سره یو ځاي په دې دوو سیمو کې هم د اور غورځوونې فعالیتونه رامنځ ته شویدي.

# د اووه ځلویښتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>۱-د لوست موضوع</td><td colspan="2">د نړۍ د پیدایښت په باره کې نظریې</td></tr>
<tr><td>۲-د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې.</td><td colspan="2">ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د نړۍ له پیدایښت سره بشپړه اشنایي پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>-د اسلام د مقدس دین له نظره به د نړۍ په پیدایښت پوه شي.<br>-د پخوانیو پوهانو له نظره به د نړۍ د پیدایښت په اړه معلومات تر لاسه کړي<br>-د نړۍ د پیدایښت په باره کې به د نووو پوهانو له نظر یو څخه خبر شي.</td></tr>
<tr><td>۳-د تدریس میتود</td><td colspan="2">څرګندونې او ډله ییز کار</td></tr>
<tr><td>۴-د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود، د لوست اړوند انځورونه که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوتر سي ډي ګانې او انټرنټ.</td></tr>
<tr><td>۵-د ارزونې لارې</td><td colspan="2">تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه، عملي کار.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶-په ټولګي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه.</td><td rowspan="2">د سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ کنټرول، له ټولګي څخه بهر فعالیت، د تېر لوست ارزونه، له تېر لوست سره د نوې لوست اړیکې ټینګول.<br>-هڅوونکي پوښتنه.<br>-موږ او تاسو چیرته اوسیږو؟</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ<br>–د پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د نړۍ د پیدایښت په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–د لومړنیو نقشو له مخې د نړۍ پیدایښت څرگند کړئ<br>–د نړۍ د پیدایښت په باب خبرې وکړئ<br>–پرتختې د نوي لوست غوره او مهم ټکیولیکئ.<br>–ز ده کوونکي په ډلو وویشئ او د هغو د ټولگي فعالیتونه وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې په اړوندپوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ.<br>–له ټولگي څخه بهر فعالیتونه څرگند کړئ. | –د نوي لوست سرلیک گوري.<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د نړۍ د پیدایښت په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–نقشې ته په غور گوري او د ښاغلي ښوونکي لارښوونې په غوراوري<br>–د نړۍ د پیدایښت په هکله له ښاغلي ښوونکي سره خبرې کوي.<br>–تختې ته گوري او غوره ټکي ترې لیکي<br>–د ټولگي د ننه ډله ییزو فعالیتونو کې ونډهاخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د ټولگي مخکې د خپل استازې په واسطه وړاندې کوي.<br>–مهم ټکي او خپلې پوښتنې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنوته ځواب ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او ځانونه پرې پوهوي<br>–له ټولگي بهر فعالیت ته ځیر کیږي. | ۳۵<br>دقیقې |

**۸–د لوست پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–پخوانیو پوهانو د نړۍ د پیدایښت په هکله داسې نظر یې ورکړي وې، چې د کایناتو په فضاکې لوگی او غاز په پراخه حجم تیت او پرک وچې ننیو پوهانو هم هغه منلي چې د سحابه (نیبولا) په نوم یې یادکړي دی.

۲–کانت د نړۍ د پیدایښت په هکله داسې نظر ورکړی دی چې د کایناتو په فضا کې (نیبولا) تورې وریځې یا د غبار غونډې وریځې له جامدو کوچنیو ذرو سره شتون درلود چې د وخت په تیرېدو د جاذبې قوې پواسطه سره ونښتل او لویه کتله یې جوړه کړه.

لاپلاس داسې نظر ورکړي چې لمریز نظام په لومړي پړاوکې له سحابي وریځې څخه عبارت وچې ډیره زیاته تودوخه یې لرله. د نوموړو وربځو پنډوالی ډیر زیات و، د همدغو وریځو تودوخه د وخت په تیرېدو سره کمه شوه، په پایله کې یې کنډې او سوري پیدا کړه، هاربیکر په دې عقیده وچې نیبولا د وربځې کتلو یا هغو حلقو چې د هغو پنډوالي د ځمکې د کتلې او یاله هغې څخه غټ و، شتون درلود، دغه کتلې په فضا کې او په حرکت کې وې، په ناڅاپي ډول د لمر په سطحه ولگېده او وچاودیده اوله شیندل شوو ټوټو څخه یې ستوري جوړ شول، د تایدل د نظر یې له مخې لمر په کایناتو کې د یو وړانگو لرونکي جسم اوسرې وړانگې په ډول شتون درلود، وروسته ټوټې شو او د لمریز نظام ستوري یې جوړ کړل.

۳–د نړۍ د پیدایښت په شیبو کې لویه چاودنه چې د بیگ بنگBigbangپه نامه د کائناتو او په فضا کې رامنځ ته شوه او د هغې په اثر د شېدو د لارې کهکشان او منظومې جوړې شوي، لاکبیر داسې نظر لري چې په فضا کې آسماني ډبرې شته، هغه سیاري چې په لمریز نظام کې دي د همدغه تېرو له یو ځای کیدو څخه جوړې شوي دي.

**۹-د ښوونکی لپاره اضافي معلومات**

پخوانیو او نوو پوهانو د عالم د پیدایښت په باره کې بېلې نظر یې ورکړي دي، خو د اسلام د سپیڅلي دین له پلوه الله ج نړۍ او ټول موجودات پیدا کړي دي. د اسلام له نظره د کایناتو په فضا کې پراخه حجم او خپور دود او غاز موجود و چې ننني پوهانو هم دا منلې ده او هغه ( نیبولا سحابي ) په نوم یادوي.

**د وربځو نظریه**:

دا ډېره پخوانۍ نظریه ده جې الماني فیلسوف امانیول کانت او فرانسوي ریاضي پوه پیرسمیون لاپلاس ۱۷۹۶میلادي کال د وربځو فرضیه وړاندې کړه، دغه نظریه د لمریزې منظومې منشا لومړنۍ وربځ یا سحابي بولي چې د جاذبې لاندې راغلې او په پایله کې د دغه سحابې وربځې په مرکز کې لمر منځ ته راغی او په شاوخوا کې یې ستورو بڼه و موندله، دغه نظریه تر ۱۰۰ کاله مخکې پورې یعني د نولسمې پیړۍ تر پایه د منلو وړوه.

**د چامبرلین او د مالتون نظریه**:

امریکایي ځمکه پیژندونکي چامبرلین په (۱۹) پیړۍ کې له مولتن منجم سره بله نظریه وړاندې کړه، هغوی څرګنده کړه چې لمریزه منظومه هغه وخت منځ ته راغله چې نور ستوري د لمر په نژدېکې تېریده او تېرېدنې په دغه حرکت کې د لمر له سطحې ویلې شوي توکې راوتل او دغه تود ګاز متراکم کېدل راټولېدل او بېلېدل، په ستورو بدل شو، کوچنۍ لارې د یو بل د متقابلې جاذبې د طاقت په اثر یو بل جذب او ستورې پیدا شول په ۱۹۳۴ میلادي کال کې راتزل چې فضایي فزیک پوه و، څرګنده کړه چې ستورې په ګډه د لمریزې منظومې ټول مسایل پکې راځي، خو د لمر حجم د ځمکې په پرتله ۱,۳۰۴۰۰۰ځله ډېر دي او د لمریز نظام د ټولو سیارو په پرتله یې د کتلې وزن ۷۵۰ ځلې زیات دي، په همدې وخت کې منجمانو (ستورو پیژندونکو) داسي نښې، هم وکتلې چې د دغه وړاندیز د منلو سبب شو چې ټول ستوري د لمر په ګډون د سیارو ترمنځ وریځو د انقباض په پایله کې منځ ته راغله دي.

**د نیبولا د وریځو نظریه**: په ۱۹۴۰ -۱۹۵۵ کلونو کې الماني، هالیندي او امریکایي ستورو پیژندونکو یوه بشپړه نظریه وړاندې کړه، کولای شو چې د لمریز نظام ټول مسایل پکې حل شي. د (غباري) وریځې د نظریې په اساس لمریزه منظومه له هغه وربځې چې غاز او غبار پکې دی (نېبولا ) چې ډېره ورو تاوېدله اوله هغې وروسته کلکه ښکاره شوه، د دغه تاوېدو سرعت مرکز ته په نژدې برخه کې لږو اوله مرکز څخه په لرې کېدوکې ډېر شوېدي، کله چې وریځې ورو ورو سړېدې په ځنډوکې یې متراکم مواد و، کردابونو غوندې منځ ته راغله او په پایله کې یې ستورې ښکاره شول چې ټول په یو لورې څرخېدل مرکزي برخې کې څرخیدل ورو، د متراکم کېدو په نتیجه کې یې د لمر کتله رامنځ ته شوه او ورو ورو د متراکم شوو توکو د جاذبې ځواک د لمر د مرکز په تودوخه کې ډېر شو.

# د اته څلویښتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>۱-د لوست موضوع</td><td colspan="2">کهکشان (Galaxy)</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې.</td><td colspan="2">ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندېموخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د کهکشان او دهغه ډولونه به وپیژني<br>ځانگړې موخې:<br>-د کهکشان په باره کې به معلومات تر لاسه کړي.<br>-د کهکشان ډولونهبه یو له بل څخه بیل کړي.<br>-د شیدو لار او د اندرو میدا کهکشان به وپیژني.<br>-درې گونې کهکشان او قنطورس به وپیژني او نوروته به یې معلومات وړاندې کړي.</td></tr>
<tr><td>۳-د تدریس میتود</td><td colspan="2">څرگندونې او ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه</td></tr>
<tr><td>۴-د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود، د لوست اړوند انځورونه، که شونې وي جغرافیایي ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیگانې او انټرنټ.</td></tr>
<tr><td>۵-د ارزونې لارې</td><td colspan="2">تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه، عملي کار.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶-په ټولگي کې د تدریس او زده کړې لومړنې فعالیتونه.</td><td>د سلام اچول، روغبړ، د حاضرۍ کنترول، له ټولگي څخه بهر فعالیت دتېر لوست ارزونه او له تېر لوست سره د نوي لوست د اړیکو ټینگول.</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>-هڅوونکي پوښتنه:<br>- آیا پوهیږئ چې کهکشان څه شی دی؟</td><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پتې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د کهکشان په باره کې پوښتنې وکړئ.<br>–د نقشې له مخې د کهکشان لمریزه منظومه شرحه کړئ<br>–د کهکشان په باره کې خپلو کې خبرې وکړئ<br>–پر تختې د لوست غوره او مهم ټکیولیکئ.<br>–د کهکشان د نوي لوست د دلدل د لارې کهکشان او اندرومیدا کهکشان د ترې انکلوم کهکشان او د قنطورس کهکشان شرحه کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي د ننه فعالیت یې وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–پوښتنې وکړئ<br>–د لوست د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت څرګند کړئ | –د نوی لوست سرلیک ته ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–په نقشه کې د رنګ د کارولو په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او د ښاغلي ښوونکي لارښوونې په غور اوري<br>–د کهکشان په اړه خبرې کوي.<br>–په نقشه کې د رنګ د کارولو په باره کې له ښاغلي ښوونکي سره خبرې کوي او شرحې ته غوږ نیسي.<br>–په ټولګي کې خپلې پوښتنې مطرح کوي.<br>–زده‌کوونکي په ډلوکې د خپل فعالیت نتیجه د ټولګي په مخکې د ښوونکي په لارښوونه د ډلې د استازې په واسطه وړاندې کوي.<br>–د نوي لوست د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه وایي<br>–د نوي لوست لنډیز ته ځیرېږي چې پرې پوه شي<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت تر سره کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست پوښتنوته ځوابونه:**

۱–د لمر وړانګې ځمکې ته په اتو دقیقو کې را رسیږي

۲–د شېدو د لارې په کهکشان کې له دوو سوو میلیونو زیات ستوري او ثوابت شته چې یو شمیریې له لمر څخه څو ځله غټ او لوی دي. د بېلګې په توګه دویګا ستوري د لمر څو برابره دي. بیتل ګوس د لمر ۶۰۰ برابره او دبران دلمر ۲۰ برابره دي.

۳–د دې لپاره چې د غه کهکشان له زیاتې پراختیا سره په لایتناهي فضا کې د صاف آسمان په شپو کې د شودو په روښانه رنګ لیدل کیږي، نو دغه کهکشان د شودو د لارې په نوم یادیږي

۴–له لویې چاودنې څخه مراد د ستورو، ثوابتو او قمرونو د جوړښت اساس دی چې د عالم د جوړښت بنسټ جوړوي.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

کهکشان د ستورو د سیستم له هغې ټولګې څخه عبارت دی چې د ستورو نړۍ هم ورته وایي. په کهکشان کې په ملیاردو ستوري شتون لري، د فضا پراختیا او سحابي کهکشان اندازه کېدلی نشي، پیل او پای یې ټاکلی نشو، د کایناتو په فضا کې په میلیونو فضا یې کهکشانونه شته چې لمریز نظام نظر د هغه لویوالی ته دیو ټکي حیثیت لري، په ځینو هغو عکسونو کې چې له ستورو اخېستل شوي، لیدل کیږي چې لمریز نظام په سحابي کهکشانکې د نقطې په شان یو ځای نیولی دی او په ملیونو نورې منظومې یې په شاوخوا کې لیدل کیږي، که څه هم لمریزې منظومې په سحابي کهکشان کېدېر کم ځای نیولی، سره له دې هم د لمر او دهغه د ډېر لرې ستوري (پلوتو) ترمنځ (۹۲۴) میلیونه کیلومتره واټن شته دی. چې د ځمکې د کرې په نسبت د لمر چاپیره په (۲۴۹) کالو او دورو کې خپل انتقالي حرکت تر سره کوي، دغه رقمونه د لمریز نظام پراخیتا او لویوالی په ښه ډول ښکاره کوي، دلمریز نظام د پراختیا او لویوالي او د کایناتو د پراختیا په باره کې په زړه پورې معلومات وړاندې کوي.

# د نهه څلوېښتم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | لمريز نظام | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د شمسي منظومې پېژندنه.<br>ځانګړې موخې:<br>–د شمسي منظومې په باره کې به معلومات حاصل کړي.<br>–د شمسي منظومې د جوړښت په باره کې به پوهه حاصله کړي او نوروته به يې وړاندې کړاي شي<br>–شمسي منظومه بهرسم کړای شي.<br>– شمسي منظومې ته علاقمندی پيدا کړی. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرګندونې او ډله ييزکار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکي د لارښود کتاب، د لوست اړوند انځورونه که شوني وي جغرافيايي ويديويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سي ډيګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي ديادداشت کتابچه، عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدريس او زده‌کړې لومړنې فعاليتونه. | د سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظيمول، د حاضرۍ کنټرول، له ټولګي بهر فعاليت کتل، د تېر لوست ارزونه، دنوي او تېر درس ترمنځ داړيکو ټينګول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه.<br>–ايا د شمسي منظومې په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت په دقيقو<br><br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>– نوي لوست په ټپه خوله ولولئ.<br>–د نوي لوست مهمې برخې په تختېوليکئ ستونزمن لغتونه او اصطلاحگانې معنا او روښانه کړئ.<br>–د شمسي منظومې محتوا روښانه کړئ.<br>–نقشه شمسي منظومه ښيي<br>–د نقشې په باره کې له زده‌کوونکو سره خبرې وکړئ.<br>–د شمسي منظومې نوی لوست، سحابي نظريه د چامبرلين او مالتون، د وربځو او غباري وريځو په اړوند نظر څرگند کړئ.<br>–ز ده کوونکي د ټولگي د ننه فعاليت له پاره په ډلوکې تنظيم کړئ.<br>–له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ<br>–د لوست د ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولگي بهر فعاليت دنده روښانه کړئ. | –د نوي لوست سرليک ته گوري<br>–نوی لوست په ټپه خوله لولي.<br>–تختې ته گوري<br>–د لغتونو او اصطلاحگانو معنا کولوته غوږ نيسي<br>–د لوست تشريح کولوته غوږ نيسي<br>–نقشې ته گوري او لولي يې.<br>–د ښوونکي خبرو ته پاملرنه کوي.<br>–په ډلو کې د ټولگي د ننه فعاليت کوي، په خپلو کې مشوره کوي او د خپل بحث نتيجه د ټولگي مخې ته وايي<br>–پوښتنې ته ځواب وايي<br>–د لوست د ارزونې په اړوند پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډيز ته ځيرېږي چې پوه شي<br>–ز ده کوونکي له ټولگي څخه وتلی فعاليت ليکي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست اړوند پښتنوته ځوابونه:**

**۱–شمسي منظومه ډېر اوږ د لرغونتوب لري، پوهان په دې عقېده دي چې شمسي منظومه پنځه مليارده کاله پخوا جوړه شوې ده، هغه وخت چې د غاز گرد او غبار زياتې برخې سره گډې شوې، د جاذبې په اثر سره يو ځای شوې، دغه د گاز غبار او گرد پراخه برخه کلکه شوه، منځنۍ برخه يې ډېره توده شوه، په پای کې لمر او د شمسي منظومې ټولې سيارې ترې جوړې شوې.**

**۲–شمسي منظومه په شمسي نظام پورې اړوند سيارو او اجرا موله ټولگي څخه عبارت ده.نهه اصلي سيارې پکې دي لکه: عطارد، زهره، ځمکه، مريخ، مشتري، زحل، اورانوس، نيپتون، پلوتو او د ستورو غټ او واړه اسماني اجرام دی چې د مريخ او مشتري ترمنځ دي.**

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

شمسي منظومه ډېره اوږده لرغو نتیا لري، پوهان په دې باور دي چې شمسي منظومه پنځه ملیارده کاله پخوا جوړه شوې، کله چې ډېر ګرد او غبار سره یو ځای شو، د جاذبې په واسطه سره غونډ شول، دغه د غاز او غبار ټوټه سره کلکه شوه او په منځنۍ برخه کې ترې سکروټه جوړه شوه چې په پایله کې ترې لمر او د شمسي منظومې ټولې سیارې جوړ شول، د شمسي منظومې د جوړښت او پیدایښت په باره کې پوهانو او عالمانو بېلې بېلې نظریې وړاندې کړي دي.

په شمسي نظام کې بې شمېره لکۍ لرونکي ستوري او میټا اوریټونه شتون لري، چې له هغو څخه یې ځینې د شهاب ساقب په نوم پېژنو، د ستورو د لوی کمر بند سر بېره واړه ستوري شتون لري چې په منظم ډول د لمر شاوخوا را څرخي، کله چې له دې ستورو څخه یو له خپل مدار څخه ووزي، د آسماني ډبرو په نوم نا معلومو خواوته حرکت کوي، کله کله هم دا آسماني ډبرې ځمکې ته راځي او پر ځمکه لګیږي، چې لویې کندې رامنځ ته کوي.

## د پنځوسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | د شمسی منظومې یا د لمریز نظام سیارې | |
| ۲-د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د شمسي منظومې له سیارو سره به زده‌کوونکي اشنا شي.<br>ځانگړې موخې:<br>-د شمسي نظام د سیارو په باره کې به معلومات پیدا کړي<br>-د شمسي منظومې د سیارو نومونه به وویلاي شي<br>-د شمسي منظومې او ټولو سیاروپه اړه به پوه شي او نوروته به يې معلومات وړاندې کړي. | |
| ۳-د تدریس میتود | څرگندونې او ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د ښوونکي لارښود کتاب، د لوست اړوند انځورونه که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیگانې او انټرنټ. | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي یادداشت کتابچه، عملي کار. | |
| ۶-په ټولگي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه. | د سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، د حاضرۍ-کنټرول، له ټولگي څخه د بهر فعالیت کتل، د تېر لوست ارزونه او له تېر لوست سره د نوي لوست د اړیکو ټینگول.<br><br>-هڅوونکي پوښتنه<br>-ایا د لمریز نظام د سیارو په اړه معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–د پټې خولې لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د نوي لوست مهمې برخې پر تخته وليکئ<br>–ستونزمن لغتونه او اصطلاحگانې معنا کړئ.<br>–د شمسي منظومې د سيارو محتوا څرگنده کړئ.<br>–نقشه د شمسي منظومې سياري ښيئ<br>–له زده کوونکو سره د نقشې په اړه خبرې وکړئ<br>–زده‌کوونکي په ټولگي کې د فعاليت د تر سره کولو په خاطر په ډلو وويشئ.<br>–له زده‌کوونکو د ارزونې په اړوند پوښتنه وکړئ<br>–د لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>له ټولگي څخه د بهر فعاليت سپارښتنه وکړئ. | –د نوي لوست سرليک ته گوري.<br>–نوي لوست په پټه خولهلولي.<br>–تختې ته گوري.<br>–د لغتونو او اصطلاحگانو معنا ته غوږ نيسي.<br>–د لوست څرگندولوته غوږ نيسي<br>–نقشې ته گوري او لولي يې<br>–د ښوونکي خبروته پاملرنه کوي.<br>–زده‌کوونکي په ډلو کې د ټولگي د ننه فعاليت تر سره کوي، په خپلو کې مشوره کوي د خپل بحث پايلې د استازو په واسطه د ټولگي په مخکې وړاندې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>–د لوست لنډيز ته ځيرېږي چې پوه شي<br>–له ټولگي څخه بهر فعاليت ليکي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–عطارد، زهره، ځمکه، مريخ، مشتري، زحل، اورانوس، نيپتون، او پلوتو.

۲–مشتري

۳–پلوتو

۴–د زحل سيارهد لمريز نظام، له ډېر خارق العاده سيارو څخه ده، د زحل سياره داسې حلقې لري چې له زررونو کوچنيو حلقو څخه جوړې شوي دي. د زحل حلقې له بې شمېره آسماني، اجرامو او غبارونو څخه جوړې شوې دي، په داسې حال کې چې اورانوس حلقه نه لري اوکه د تلسکوب په واسطه يې وگورو پکې داسې سيارې دي چې رنگ يې د هايدروجن او ميتان د غاز غوندې رامنځ ته شوی دی.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د شمسي منظومې سيارې په مجموع کې د لمريز نظام سيستم جوړوي، له (۹) سيارو څخه عبارت دي چې د لمر په شاوخوا کې په بېلو بېلو واټنونو په بيضووي او مستوي مدارونو کې خپل انتقالي حرکت تر سره کوي چې په دې کتاب کې د ټولو لوستونو په باره کې پوره معلومات ورکړل شوي دي.
حجم د سيارو جسامت او مساحت يو له بل څخه توپير لري، هغه درې سيارې چې لمر ته نژدې دي، د گرمو او تودو سيارو په نوم يادېږي، ځينې له دې سيارو څخه پر ځان چاپېره اضافي کمر بندونه هم لري مثلا د زحل او مشتري سيارې چې تر اوسه يې خاورين قشرنه دی رامنځ ته شوی، جوړښت يې د تکامل په حال کې دی. نيپتون او پلوتو د شمسي نظام له ډيرو لرو سيارو څخه دي، چې ډېر ساړه او هميشني يخ لري. له دې سيارو هريو د بيضوي په د بيلا بيلو مستوي گانو کې خپل انتقالي حرکت تر سره کوي. له دې سيارو څخه يې ځينې بيلا بيلې سپوږ مکۍ لري. چې ځمکه يو سپوږمۍ لري، مياشت يوازينۍ مشهوره سپوږمۍ شميرل کيږي. له دې سيارو څخه يې ځينې ډيرې سپوږمۍ لري، چې لوی او واړه کمر بندونه يې له ځانه چاپيره جوړ کړيدي.
بايد يادونه وکړو چې لمريزه منظومه د شېدو د لارې د کهکشان له مرکز څخه ۲۶ زره نورې کاله واټن لري. په دې ترتيب د شېدو د لارې په کهکشان کې د زرگونو او مليونو شمسي نظامونو د شتوالي اټکل کيږي.

## د یو پنځوسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د ځمکې جوړښت | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي<br>–عمومي موخې:<br>–د ځمکېد جوړښت په اړه به معلومات پیدا کړي<br>ځانگړې موخې:<br>–د ځمکې په جوړښت به پوه شي.<br>–د ځمکې د طبقې‌رسم به وکړای شي.<br>–د ځمکې د بهرني قشر او دهغه د طبقو په اړه بهپوه شي.<br>–د ځمکې د هستې او د ځمکې د اندازې او حجم په باره کې به معلومات پیدا کړي او نوروته به یې وړاندې کړي.<br>–د اوبو او وچې ټوټې به وپیژني. | |
| ۳–د تدریس میتود | تشریح کول، د ځمکې د داخلې او خارجې طبقو په نقشې‌کارکول، ډله ییز کار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، د لوست اړوند انځورونه او عکسونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډي گاني او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه، عملي کار. | |
| ۶–په ټولگي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیمول، د حاضرۍ کنټرول، له ټولگي څخه و بهره دندې لیدل، د تېر لوست ارزونه او د نوي او زاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینگول. | وخت په دقیقو |
| | هڅوونکي پوښتنه:<br>–د ځمکې د جوړښت په هکله څه پوهیږئ؟ | ۱۰دقیقې |

| ۷-د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| -پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>-په پېټه خوله د نوي لوست د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>-پر تختې د نوي لوست مهمې برخې وليکئ.<br>-ستونزمن لغتونه اواصطلاحگانې حل او معنا کړئ.<br>-په تخته د لوست غوره او مهمټکيوليکئ.<br>-د ځمکې د جوړښت محتوا تشريح کړئ.<br>-په نقشه کې د ځمکې د ننه طبقېوښيئ.<br>-ز ده کوونکي په ډلو وويشئ او د ټولگي دننه د هرې ډلې کار ورونبيئ.<br>-د ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ.<br>-د نوي لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>-له ټولگي څخه بهر کار ورونبيئ. | -د نوي لوست سرليک ته گوري.<br>-نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>-تختې ته گوري.<br>-د لغتونو او اصطلاحگانو معنا ته غوږ نيسي<br>-د لوست څرگندولوته غوږ نيسي<br>-په نقشه کې د ځمکې طبقو ته گوري لولي يې او تشريح ته يې غوږ نيسي<br>-د ښوونکي خبروته پاملرنه کوي او په نقشې کې د ځمکې طبقوته پاملرنه کوي.<br>-په ډلو کې کار کوي د خپلې ډلې کار د خپل استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولگي مخکې نوروته وړاندې کوي.<br>-د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه وايي<br>-د نوي لوست لنډيزته غوږ نيسي او ځانونه پوهوي<br>-له ټولگي څخه بهر فعاليت ليکي. | ۳۵ دقيقې |

**۸-د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱-د ځمکې طبقې له ليتوسفير، ځمکې باندينې مخ ( قشر)، (د سيال، سيما)، مگما، د ځمکې هستې له داخلي او خارجي هستې څخه عبارت دی.

۲-هغه ټول.

۳-د سيال د طبقې مرکبونه، زياتره د سيلوسيم او المونيم له توکو څخه جوړ شوي او سيما په طبقې باندې دي، خو دسيما طبقه د ځمکې د قشر دويم Mil. Sec څخه دی چې د سيلوسيم او ميگنيزيم له مرکبونو څخه جوړه شوې ده.
په دې ساحه کې دزلزلې د څپو سرعت حساب شوی دی، د سيال د طبقې ډبرې د گرانيت ډبرې دي، چې له فلد سپار او مايکا ډوله منرالونو څخه جوړې شوي دي او د فلدسپار د منرال مقاومت د جوي او هايدريشن عوارضو په مقابل کې ډير کم دی، ډير ژر تجزيه او حل کيږي. خو د سيما طبقه تياره او تور رنگې ده او د بزالت له ډول څخه ده چې د اورشيندونکو توکو دوتو پر وخت کې لاوا ډبرې کلکې ټوټې رامنځ ته کوي.

۴-د مگما طبقه د اوسپنې مگنيزيم او سيليکيت له توکو څخه جوړه شوې ده، منرالونهاو د دغو عنصرو ترکيب کلکې ډبرې رامنځته کوي، خو د ځمکې هسته له دوو بېلو بېلو طبقو څخه د داخلي هستې او خارجي هستې په نوم چې د فزيکې څرنگوالي او دکيمياوي خواصو د ترکيب له پلوه يې هره يوه بېله بېله ده، مقناطيسي ځانگړنه لري.

۵-ځمکه د لويوالي له پلوه پنځمه سياره شميرل شوې، د ځمکې حجم يو ترليون او درې اتيا ميليارده او درې سوه اوشل ميليونه کيلو متره مکعبه دی.

۶-په سلو کې ۷۱٪ يې اوبه، ۲۹٪ يې وچه ده

۷-وچې ټوټې يې د اسيا، افريقا، اروپا، امريکا، استراليا او انتارکتيکا له وچو او د اوبو ټوټې يې له شمالي کنگل، سويلي کنگل، آرام سمندر، اطلس او د هند له سمندرونو څخه عبارت دي.

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ځمکه کرې ته ډېره نژدې ښه لري، غرونو او درو دغې کروي ښې ته لږ بدلون ورکړی، دغه کره په قطبونو کې لږه را ننوتلې او د استوا په برخه کې وتلې ده، له دې امله ځمکه دجیود ښه لري، د ځمکې قطبي قطر له استوايي څخه (۴۰) کیلومتره لږ دی. د ځمکې کره له بیلو بیلو طبقو څخه جوړه شوې ده، لکه لیتوسفیر، د ځمکې قشر، دسیال طبقه، د سیما طبقه، د منتل طبقه، مګما، د ځمکې هسته، (داخلې او خارجې هسته).

د ځمکې داخلي تودوخه له ۳۰۰۰ سانتي ګراد درجو څخه زیاته ده، چې دا هسته له کروم او اوسپنې څخه رامنځ ته شوي او د ځمکې ډیره درنه برخه جوړوي، د ملیونونو اتموسفیرونو تر فشار لاندې یو له بل سره ګډ شوي دي، که چیرې کله د اتشفشانونو له خواو او سوریو څخه اتشفشان د ځمکې سطحې ته لار پیدا کوي لاوا مواد د ځمکې له داخلي او بهرنی سطحې څخه او د هغې طبقې له پاسه سیال او سیما ځای نیسي، چې وچې ټوټې او بحرونه جوړوي، د ارتفاع یا لوړوالي توپیر د ځمکې په قشر کې ډیر زیات دی، ډیره لوړه څوکه د ځمکې پر مخ د ایورست څوکه ده چې ۸۸۴۸ متره لوړوالي لري، په داسي حال چې د ځمکې ډیره ژوره برخه د چین په شرقې خوا د بحر الکاهل په سمندر کې د ماریانا ګودال دی، چې ۱۱۰۳۲ متره د چین په سهیل ختیځ کې موقعیت لري.

# د دوه پنځوسم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د نړۍ مشهور سيندونه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–ز ده کوونکي به د نړۍ د مشهورو سيندونو بهپه اړه معلومات پيدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د نړۍ د مشهورو سيندونو موقعيت به په نقشه کې وښايي.<br>–د نړۍ د مشهورو سيندونونومونه به واخلي.<br>–د بريښنا د انرژۍ د توليد او د کرنې له پلوه به د سيندونو له ګټو سره مينه پيدا کړي. | |
| ۳–د تدريس ميتود | شرحه کول، د نړۍ په طبيعي نقشې کار، ډله ييزکار، خبرې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافيايي ويډيويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سي ډيګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه، عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدريس او زده‌کړې لومړنې فعاليتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظيمول، د حاضرۍ کنترول، د ټولګي د ننه فعاليت او د عملي کار ارزونه<br><br>هڅوونکي پوښتنه:<br>–د نړۍ مشهورو سيندونو په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت په دقيقو<br><br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پټې خولې لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د نوي لوست مهمې برخې په تختېولیکئ.<br>–ستونزمن لغتونه او اصطلاحګانې معنا او اصلاح کړئ.<br>–د نړۍ د مشهورو سیندونو محتوی توضیح کړئ.<br>–په نقشه کې د نړۍ مشهور سیندونه ورونبئ<br>–د نړۍ د مشهور سیندونو په اړه زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې د هغو فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونېپه اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت توضیح کړئ. | –د نوي لوست سرلیک تهګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–تختې ته ګوري.<br>–د لغتونو او اصطلاحګانو معنا ته غوږ نیسئ<br>–د لوست توضیح ته غوږ نیسي<br>–په نقشه کې د نړۍ مشهور سیندونه ګوري او هغه مطالعه کوي.<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د خپل استازې په واسطه د ښوونکي له نظر سره سم د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–مهمې نقطې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنوته ځوابونه وایي<br>د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي او ځانونه پوهوي<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت تر سره کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

**۱–د نړۍ ډیر مشهور سیندونه له نیل دریاب، آمازون، دانیوب، سند، مسي سي پي، آمو، (جیحون)، سیر دریا، (سیحون)، هوانګهو، اورال، دجله او فرات، اوب، لینا، راین، والګا، لورا، دنیپر، دینستر، تاژ، اوستولا، ګوادیانا، پو، رون، کانګو،** نایجریا، کلورادو، مادیرا، پارانا، دارلینګ، جورجیا، دیامنتینا، تاسون، ویکتوریا او مورا څخه عبارت دي.

**۲–د نیل دریاب د افریقا له ډیرو اوږدو دریابونو څخه دی چې د افریقې له ختیځو غرونو او د ویکتوریا د جهیل له شمال څخه یې سر چینه اخیستې، د سوډان او مصر هېوادونو له منځ څخه تیریږي، د (۶۶۵۰) کیلو مترو په شاوخوا له لارې وهلو څخه وروسته د مدیترانې په بحیره کې توییږي، په اتیوپي کې د اوري د تیزوبارانونو پواسطه د نیل دریاب دومره ډیریږي، چې له څنډ و څخه یې اوړي، دغه دریاب کرنیزه، اقتصادي او ترانسپورتي مهم ارزښت لري، دوه لوی مرستیالان لري چې په سپین نیل او په آبي نیل مشهور دی.**

**۳–د مسی سي پي دریاب د شمالي امریکا د اوبو ډیره لویه او مهمه شبکه بلل کیږي، دغه دریاب خپل ډیر مهم مرستیال یعنې میسوري سره (۶۴۲۰) کیلومترو په اوږ والي له شمال څخه سویل خواته بهیږي، د مسی سیپي نوم بومي منشا ده او د اوبو د پلار معنا لري، د دغه دریاب په حوزه کې د طبیعي نا برابرو شرایطو په علت له ډیر پیچلي تګلاري په پای کې د مکسیکو خلیج ته توییږي.**

**۴–د دارلینګ دریاب د استرالیا له ډیرو لویو دریابونو څخه دی چې اقتصادي اهمیت لري او له اوبو څخه یې دکرنیزو ځمکو په خړوبو لوکې کار اخېستل کیږي.**

**۹-د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د نړۍ د مشهورو دریابونو نومونه په لوست او پوښتنو کې راغلي، اوس د هغو دریابونو په هکله لنډ معلومات وړاندې کوو:

۱-د یانګ تسه دریاب: یانګ تسه د اسیا له ټولو زیات اوږد او د نړۍپه دریابونو کې د اوږدوالي له پلوه دریم دریاب دي چې اوږدوالي يې(۶۳۰۰) کیلو مترو ته رسیږي، د تبت او چین ترمنځ بهیږي، سر چینه يې د بحر له سطحې له (۵۵۰۰) مترو څخه لوړه، د تبت په لوړوکې ده. دغه دریاب د خپلې تګلاري په اوږدوکې له ژورو اوکږو وږو درو څخه تیریږي، چې کرنیز، اقتصادي او ترانسپورتي ارزښت لري.

۲-د سند دریاب: سند یا اباسین د اسیا له ډیرو سترو او مشهورو دریابونو څخه دی، له دغه دریاب څخه د زراعتي ځمکو په خړوبولو او د سوداګریزو توکو د وړلو راوړو په منظور کار اخېستل کیږي، دغه دریاب پنځه مرستیالان لري چې له جهلم، چناب، راوي، ستلج او بنیر څخه عبارت دي، چې د پنجاب په سیمه کې سره یو ځای کیږي او د سیند دریاب په نامه یادیږي، البته دغه دریاب د اندوس او اباسین په نومونو هم یاد شوی او د سویل او سویل لویدیځ خط ته رهي دی، اوږدوالی يې (۳۱۸۰) کیلومتره دی او د هند بحرته تویږي، د کابل سیندېي هم له مرستیالانو څخه دی.

۳-د دانیوب دریاب: دا دریاب د اروپا له مشهورو دریابونو څخه دی چې له څو هېوادونو تیریږي، اوږدوالی يې (۲۸۶۰)کیلومتره دی، په المان کې د تور ځنګل له غرونو څخه سر چینه اخلي، د المان، اتریش، او د پخوانی یوګوسلاویې له یوې برخې، هنګري، بلغاریا، رومانیا او سلواکیا څخه چې تیر شي، تورې بحیرې ته لویږي، سیاسي، اقتصادي او کرنیز ارزښت لري.

۴-د مسی سي پي دریاب: د امریکا د متحده ایالاتو د اوبو لویه او غټه شبکه د مسی سي پي دریاب دی، دغه دریاب له ډیر مهم مرستیال میسوري سره د ۶۴۲۰ کیلو مترو په اوږدوالي له شمال څخه سویل خواته بهیږي د مي سي پي د نوم معنا بومي منشا ده چې د اوبو د پلار معنا لري، د دغه دریاب رژیم دهغه د یوې حوزې د طبیعي نا برابرو شرایطو په علت ډیر پیچلی دی او په پای کې د مکسیکو خلیج ته تویږي.

## د درې پنځوسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>۱-د لوست موضوع</td><td colspan="2">د ځمکې د وچو لوړې ژورې</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې.</td><td colspan="2">ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-ز ده کوونکي به د ځمکې د وچو ټوټو د لوړو او ژورو په اړه معلومات پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>-د ځمکې د وچو ټوټو او ژورو په باره کې به معلوماتپیدا او نوروته وړاندې کړي.<br>-د ځمکې د مخ نقشه به رسم کړي.<br>-د ځمکې د مخ له لوړو او ژورو سره به د کرنې له پلوه مینه پیداکړي.</td></tr>
<tr><td>۳-د تدریس میتود</td><td colspan="2">تشریح کول، د نړۍ په طبیعي نقشې باندې کار، ډله ییز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه</td></tr>
<tr><td>۴-د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، پر لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیګانې او انټرنټ.</td></tr>
<tr><td>۵-د ارزونې لارې</td><td colspan="2">تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه، عملي کار.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶-په ټولګي کې د تدریس او زده کړې لومړنې فعالیتونه.</td><td>سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ کنټرول، له ټولګي بهر فعالیت کتل، دتېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول.</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>هڅوونکي پوښتنه<br>-د ځمکې د وچې ټوټې د لوړو او ژورو په اړه څه پوهیږئ؟</td><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷-د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| -د تختې پر مخ د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>-د نوي لوست په پټه خوله لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>-پر تختې د نوي لوست د مهمو برخو لیکلو لارښوونه وکړئ.<br>-د نوي لوست لغتونه او اصطلاحگانې معنا او اصلاحکړئ.<br>-د ځمکې د وچو ټوټو د لوړو او ژورو محتوا توضیح کړئ.<br>-په طبیعي نقشه کې د وچو ټوټو لوړې او ژورې ورته وښیئ<br>-د ځمکې د وچو ټوټو د لوړو او ژورو په هکله له زده‌کوونکو سره خبرې وکړئ.<br>-زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولگي د ننه فعالیت یې وټاکئ<br>-د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>-د ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>-د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>-له ټولگي وتلي فعالیت توضیح کړئ. | -د نوي لوست سرلیک ته گوري<br>-نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>-تختې ته گوري<br>-د لغتونو او اصطلاحگانو معنا ته غوږ نیسي<br>-د لوست توضیح ته غوږ نیسي<br>-په طبیعي نقشه کې د ځمکې د وچو ټوټو لوړې او ژورې گورياو لولي<br>-د ښوونکي خبروته ته پاملرنه کوي.<br>-د ټولگي د ننه ډله ییزو فعالیتونو کې ونډه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي له نظر سره سم د استازې په واسطه د ټولگي مخکې وړاندیکوي.<br>-د مهمو ټکو په اړوند پوښتنې کوي.<br>-د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>-د لنډیز برخې ته ځیریږي او ځانونه ورباندې پوهوي<br>-د ټولگي د ننه فعالیتونه لیکي | ۳۵<br>دقیقې |

**۸-د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱-د لوړو او ژورو طبیعې پدیدو، لکه: غرو، غونډیو، درو، جلگو، دښتو، ساراگانو، غونځې شوو او فلاتونو ته ویل کیږي، ځمکې پر مخ زموږ په ژوند کې لوړې ژورې ډیر ستر لوري لري، ځکه چې دریابونه په واورو له پټو غرونو څخه سرچینه اخلي.

۲-آلپونه د سینوزویک د لومړیو کوه زایي حرکتونو Organic زیږنده ده، دغه سیستم د دوو بیلو بیلو ډلو څخه دي چې لومړی یې د بحر الکاهل د شاوخوا غرونو لړۍ ده او تر اوسه هم د دې حوزې په ځینو سیمو کې اورشیندونکي فعالیتونه او د زلزلې پر له پسې ټکانونه شته، همدغه حلقه ده چې پهFire Ring اوري حلقي یادیږي، دویمهډله د آلپ او د همالیه غرونو لړۍ ده چې د لړې ختیځ تر جزیرو او نیوزیلنډ پورې اوږده ده. په همدې توگه د شمالي امریکا د راکی او اندیز په غرونو او په جنوب کې د آلپ د سیستم تر سر لیک لاندې دي چې د امریکې له شمال څخه سویل خواته غځیدلي او ښاخونه یې وروسته له هغه چې له چیلي او ارجنټاین څخه تیریږي. له انتارکتیکا سره یوځای کیږي.

۳-ماته سیمه د ځمکې د سطحې هغه ماته سیمه ده چې یو څه په وچو ټوټو او یا د بحرونو او غرونو د لړۍ ځمکې د بحر د اوبو لاندې دي، د وچو ټوټو په سطحه کې د ځمکې د قشر مستوي ماتیدنې د ویکتوریا، نیاسا، تانگانیکا د جهیلونو، د احمر بحیرې، د عقبه خلیج او بحرالمیت اوږ دوکې لیدل کیږي، همدارنگه د اتلانتیک تر اوبو لاندې د هند په بحر او د اسیا د ختیځو غاړو ترڅنگ سیمو کې ډیرې ماتیدنې شته.

**۹-د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د ځمکې د وچو ټوټو موجودې لوړې ژورې په جيولوژيکي بيلو بيلو دورو کې منځ ته راغلې دي چې په لاندې ډول دي وچې د ميزوزوييک موده کې پراخه سيمه نيولې وه، بحرونو په تدريجې ډول د لويو غرونو د لړيو جوړښت رامنځته کړی دی، د دې دورې په پای کې هغه ځايونه چې د بحر د اوبو په واسطه لاندې شوي وي، د لويو غرونو د لړۍ د جوړښت سيمه يې رامنځ ته کړې وه، د بېلګې په توګه د آلپ او هماليا د غرو لړۍ، په شمالي امريکا کې د راکې او اپالاش غرونه تريا سيک په دوره کې د ځمکې په سطحه کې د بيلو بيلو غرونو لړۍ او ماتېدنې رامنځ ته کړي، لکه د امريکې د متحده ايالتونوپه خيتځ کې د اپالاش غرونو د آسيا او اروپا په منځ کې د اورال غرونو لړۍ او سکنديناوياشاملې دې، چې د تيتس بحريې له ځانګړنو څخه شميرل کيږي. په سويلي امريکا کې د انديز غرونو دکامچتکا ناحيې او د جاپان په شمول د آسيا شمال خيتځ سواحل د تيتس په اوبو کې دي. د اسيا او اروپا په براعظمونو کې د تيتس د بحر پراخې ساحې هم پراخه سيمه نيوله چې د مرکزي اروپا په شمول د مديترانې ټوله حوزه يې نيولې وه، د کوچنۍ اسيا اوږدو کې د فارس خليج د ايران ټوله رقبه د هند او چين د ټولو ناحيو په شمول د افغانستان ټول خلک او دلرې ختيځ جزيرو د تتيس د بحر سيمه جوړو له. د دغې دورې ټاکلې رسوبونه له سور رنګه آهکی طبقو څخه عبارت دي چې نن ورځ په دغهټولې ناحيې کېد سور رنګه مرمر ډبرو په بڼه پيدا شوي، د دغه ډول ساختمان غوره بيلګه د جبل الطارق ښکلي مناظر جوړوي.

## د څلور پنځوسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | سپوږمۍ او د هغې عمومي ځانګړتیا | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د سپوږمۍ او د هغې له عمومي ځانګړنې سره اشنایي، د سپوږمۍ، حجم، فاصله نسبت ځمکې ته او نورې ځانګړنې) به تر لاسه کړي<br>ځانګړې موخې:<br>–سپوږمۍ او د هغې عمومي ځانګړتیا وي به وپیژني<br>–د سپوږمۍ (د ځمکې د قمر)او د هغې له مختلفو مراحلو سره به مینه پیدا کړي.<br>–سپوږمۍ به په پوره ډول معرفي کړای شي او نوروته به یې هم معلومات ورکړای شي. | |
| ۳–د تدریس میتود | توضیحي او ډله ییز کار، مباحثه، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډي ګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | شفاهي، تحریري ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه، عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدریس او زده کړې لومړنې فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ کنترول له ټولګي ځخه بهر فعالیت لیدل، د تېر لوست ارزونه، د تیر او نوي لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>– کله کله موږ دشپې لخوا د سپوږمۍ رڼا وینو، دا رڼا تاسوته څنګه ښکاري؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پټې خولې دلوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–سپوږمۍ او د هغې د عموي ځانګړنو په اړه پوښتنه وکړئ.<br>–پر تختې باندې د لوست غوره او مهمې برخېولیکئ.<br>–د نقشې له مخې د سپوږمۍ، ستورو او د هغو عمومي ځانګړتیاوې توضیح کړئ<br>–د ځمکې په نسبت، د سپوږمی پنډوالي او نوروتوپیرونو په اړه خبرې وکړئ<br>–د ستورو په باب د زده‌کوونکو د ستونزو او پوښتنو حلول<br>–د ارزونې په اړوندپوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي وتلی فعالیت څرګند کړئ | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د سپوږمۍ او د هغې د ځانګړنو په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–د لوست غوره او مهم ټکیلیکي<br>–نقشې ته پاملرنه کړي او د ښاغلي ښوونکي څرګندونې په غور اوري<br>–د ټولګي د ننه فعالیت کې کارنده ونډه اخلي<br>–مهم ټکي او خپلې پوښتنې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنوته ځوابونه وایي<br>–د لوست لنډیزته ځیرېږي او ځانونه ور باندې پوهوي<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیتونه لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست اړوند پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–سپوږمۍ د ځمکې قمر دی، په شلمه پیړۍ کې امریکایي فضایې بیړۍ د سپوږمۍ پر مخ کښېناستې هرې بیړۍ کې درې تنه ناست وو چې دوه تنه یې سپوږمۍ ته ورکښته شول او دریم یې د بیړۍ د لارښوونې مسوولیت د سپوږمۍ د شاوخوا په مدار کې درلود.

۲–د امریکا د متحدو ایالتونو دوه هوانوردان هر یو نیل آرم سترانګ او ادوین الدرین (۱۹۶۹) م کال د جولای په ۲۱ نیټه د سپوږمۍ په مدار کې وو، ادوین الدرین د سپوږمۍ په مخ پلی شو او په ګرځېدوېې پیل وکړ، د سپوږمۍ توکي او ډبرې یې راټولې کړې او ځمکې ته یې راولیږې.

۳–سپوږمۍ د ځمکې په شاوخوا چورلي له پخوا څخه قمري جنترۍ د هغې د انتقالي ګرځېدو له مخې جوړیږي، سپوږمۍ یا د ځمکې قمر یوازنی جسم دی چې له نورو ځمکې ته نژدې دی او د ځمکې په شاوخوا خپل انتقالي حرکت په ۲۹ ورځو او ۱۲ ساعتو کې تر سره کوي، له ځمکې سره یوځای د لمر په شاوخوا څرخي، سپوږمۍ د ټولو سیارو له قمرونو څخه زیاته د لمر روښاني اخلي، هغه ځمکې ته لیږ دوي، د سپوږمۍ وضعي حرکت په ۲۷ ورځو او اته ساعتو کې تر سره کیږي. په ۱۶۰۹ میلادی کال کې ګالیله وکتل چې د سپوږمۍ په مخ کې د غرونوزیاتې لړۍ او کندې لیدل کیږي او د سپوږمۍ د راښکون جاذبې قوه شپږ ځله له ځمکې څخهکمه ده. د هوا د کمښت له امله بنفش وړانګه د سپوږمۍ په مخ ډېر اغیزه کوي او هر کله چې څوک په سپوږمۍ کې ودریږي، د کایناتو فضا ورته تیاره ښکاري.

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

سپوږمۍ چې د ځمکې قمر دی او لمر غونډې د (۴، ۵) بیلیون کالو په شاوخوا کې پخوا د ځمکې د کرې غونډې منځ ته راغلې، په هغه وخت کې د وریځې غاز او بړاس ډېره لویه برخه له لومړۍ منظومې بیله شوه او د ګرځېدنې د ځواک په اثرېې په کلکېدو پیل وکړ او په پای کې یې په تودېدو پیل وکړ، دغه برخه کلکه شوه، څو چې د سپوږمۍ اوسنی شکل او اندازې ته ورسیده. د سپوږمۍ د سطحې د تودوخې زیاتوالی او ورو ګرځېدنه د دې سبب شوه، چې سپک غازونه یې له سطحې‌تښتي.د سپوږمۍ کره وچه دښته ده چې هوانه لري، نه اوبه، نه واښه او نه حیواني ژوند پرته له اتموسفیر څخه اوازونه نه لېږ دیږی، نو خبرې کول پکې شونې نه دي، په سپوږمۍ کې هوا نشته او د ژوند د فعالیت ساحه پکې برابره نه ده دا چې سپوږمۍ د کومو علتونو او شرایطو له مخې اتموسفیر نلري، د جاذبې د قوې او د هغې د راښکون په کموالي او کمزورۍ پورې اړه لري، د سپوږمۍ د راښکون (جاذبې) قوه شپږ ځله له ځمکې څخه کمه ده.

د سپوږمۍ عمومي ځانګړتیا وې دا ډول را لنډ ولي شو:

–د ځمکې او سپوږمۍ ترمنځ واټن (۳۸۲۱۸۰) کیلو متره دي.

–د ځمکې دکرېټول وزن د سپوږمۍ په پرتله ۸۱ ځلې ډېر دی.

–د سپوږمۍ قطر ۳۴۷۶ کیلو متره دي.

–د سپوږمۍ ډیره پخوانۍ ډېره ۴.۶ ملیارد کاله عمر لري.

–د سپوږمۍ له شمال څخه تر سهیل پورې یو لوی چاود (شکستکۍ) شتون لري

–د سپوږمۍ پرمخ ډیرې ژورې شته دي.

–د امریکا د متحدو ایالاتونو لومړنۍ هوا باز په ۱۹۶۹ م کال د سپوږمۍ پر مخ کښته شو او د پښو ټاپونه د سپوږمۍ پر مخ پاتې شول، څرنګه چې په سپوږمۍ کې باد نه لګیږي، نو ممکن میلیونونه کاله هم دا د پښو ټاپې هلته پاتې شي

–د سپوږمۍ د جاذبې قوه، د ځمکې په پرتله شپږځلي لږه ده.

–د سپوږمۍ انتقالي حرکت د ځمکې په ګردچاپیره په $\frac{1}{2}$ ۲۹ ورځوکې او وضعي حرکت یې ۲۷.۳۳ ورځوکې په خپله شاوخوا بشپړ وي.

–په سمندرونو کې ډیر لوړ مد هغه وخت منځته راځي چې لمر، سپوږمۍ او ځمکه په یوه لیکه کې واقع شي.

## د پنځه پنځوسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | خسوف او کسوف | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د خسوف او کسوف په اړه به معلومات وموممي.<br>ځانگړې موخې:<br>–په خسوف او کسوف به پوه شي.<br>–د خسوف او کسوف توپیربه وکولی شي.<br>–د خسوف او کسوف د رامنځ ته کېدو په اړه بهمینه پیدا کړاي شي او نوروته به یې وړاندې کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرگندونې او ډله ییز کار، خبرې، اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي او وسیلې | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکیلارښود کتاب، د لوست اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوتر سي ډي گانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعالیت څارنه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه. | |
| ۶–په ټولگي کې د تدریس او زده کړې لومړنې فعالیتونه. | د سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیم، د حاضرۍ-کنټرول له ښوونځي څخه د بهر فعالیت لیدل، د تېرلوست ارزونه، د تېر او د نوي لوست ترمنځ د اړیکو ټینگول<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا پوهیږئ چې خسوف او کسوف څه شی دی؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د نوي لوست د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د خسوف او کسوف په اړه پوښتنه وکړئ.<br>–د نقشې له مخې خسوف او کسوف توضیح کړئ.<br>–د خسوف او کسوف په اړه خپلو کې خبرې وکړئ.<br>–پر تختې باندې د لوست غوره او مهم ټکي ولیکئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ د ټولګي د ننه د هغو فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې پوښتنې مطرح کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي وتلی فعالیت توضیح کړئ | –د نوي لوست سرلیک ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د خسوف او کسوف په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–نقشې ته پاملرنه کوي د ښاغلي ښوونکي څرګندونې په غور اوري.<br>–د خسوف او کسوف په اړه به معلومات تر لاسه کړي<br>–تختې ته ګوري<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې ښه ونډه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکې له نظر سره سم په خپل استازې د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–مهم ټکي او پوښتنې مطرح کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي څخه وتلی فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–کله چې ځمکه د سپوږمۍ او لمر ترمنځ په یوه مستقیمه کرښه راشي، په دې حالت کې که د ځمکې سورې په سپوږمۍ ولویږي، خسوف یا د میاشتې نیول منځ ته راځي.

۲–کله چې سپوږمۍ د لمر او ځمکې ترمنځ په یوه مستقیمه کرښه راشي، په دې حالت کې، د ځمکې سورې په سپوږمۍ ولویږي کسوف یا (لمرنیونه) منځ ته راځي.

۳–د څوار لسمې شپې سپوږمۍ ته بدر وایي یعنې په څوارلسمه شپه سپوږمۍ ټوله بشپړ روښانه لیدل کیږي.

**۹-د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

کسوف له لمر نیولو او خسوف له سپوږمۍ نیولو څخه عبارت دی، کسوف کیدای شي چې یوازې د میاشتې په نوي کېدو کې پیښ شي او خسوف یوازې د بدر په وخت، همدارنگه له ځمکې سره یو ځای په **۳٦٥** ورځو او ٦ ساعتو کې د لمر چاپیره په یوه وار گرځېدو کې بشپړیږي.

د لمر د نیولو په موده کې هوا تیاره وي او ستوري لیدل کیږي، مخکې له دې چې لمر بشپړو پوښل شي، له اړخ څخه یې میاشت یا سپوږمۍ خپله روښنایي راپریبا سي.

خسوف او کسوف یوه فزیکي عملیه ده، چې د لمر، سپوږمۍ او ځمکې د کرې تر منځ رامنځ ته کیږي: که څه هم د لمر تندر او سپوږمۍ د تندر په اړوند دو دیزې عقیدې شتون لري، چې زموږ د بحث موضوع نه ده، خو په فزیکي ډول د لمر، سپوږمۍ او ځمکې پر یوه خط را تلل او واقع کیدل، خسوف او کسوف جوړوي. د سپوږمۍ د تندر پر وخت ځمکه د لمر او سپوږمۍ ترمنځ پر یوه خط واقع کیږي، په دې وخت کې د ځمکې سورې پر میاشت لویږي، که چیرې سورې په بشپړه توگه پر سپوږمۍ ولویږي، نو د سپوږمۍ بشپړ تندر رامنځ ته کیږي که چیرې سوری بشپړنه وي: نو نیمه سپوږمۍ تندر نیسي. د لمر د تندر پر وخت سپوږمۍ د لمر او ځمکې تر منځ ځای نیسي، که د تصادف له مخې د سپوږمۍ سورې پر ځمکه ولویږي، د لمر تندر رامنځ ته کیږي، بیا هم د سپوږمۍ د سوري له امله د ځمکې پر مخ یا د لمر بشپړ تندر او یا نیم رامنځ ته کیږي. په دې وخت په بحرونو کې قوي مد او جذر رامنځ ته کیږي، خو کمزوري مدونه د سپوږمۍ او یا د لمر د جاذبې له امله هر وخت پر بحرونو تر سره کیږي.

# د شپږ پنځوسم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د ځمکې د حرکتونو ډولونه | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتیاو ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د ځمکې د حرکتونو په اړه به معلومات ومومي<br>ځانګړې موخې:<br>–د ځمکې د حرکت په ډولونو به پوه شي.<br>–د وضعي او انتقالي حرکت توپیر به وکولی شي<br>–د ځمکې د حرکت ډولونونمونه به واخلي. | |
| ۳–د تدریس میتود | توضیحي، ډله ییز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویډیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوتر سي ډي ګانې او انټرنیت. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدریس او زده کړې لومړني فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ کنترول، له ټولګي څخه بهر فعالیت لیدل، د تېر لوست ارزونه او د نوي اوزاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول.<br><br>– هڅوونکي پوښتنه:<br>– پوهیږئ چې ځمکه څو ډوله حرکتونه لري؟ | وخت ۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پتې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د ځمکې د حرکت د ډولونو په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره او مهم ټکیولیکئ.<br>–د لمریز نظام د نقشې له مخې د ځمکې د حرکتونو توضیح کول.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ د هغو د ټولګي فعالیت وټاکئ.<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ.<br>–د ارزونې په اړوندپوښتنې طرحه کړئ.<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت څرګند کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري.<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د ځمکې حرکت د ډولونو په اړه نظر څرګندوي.<br>–د لوست غوره او مهم ټکي لیکي.<br>–نقشي ته ګوري او د خپل ښاغلي ښوونکي څرګندونې په غور اوري.<br>– د ځمکې د حرکتونو په باره کې خبرې اترې وکړي.<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د استازې په واسطه د ټولګي په مخکې وړاندې کوي.<br>–مهمو ټکو او ستونزو په اړوند خپلې پوښتې کوي.<br>– د ارزونې په اړوند پوښتنوته ځوابونه وایي.<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱– ځمکه پنځه ډوله حرکت لري.

۲–وضعي حرکت د ځمکې له محوري حرکت څخه عبارت دی چې د ۲۳ ساعتو او ۵۶ دقیقو په موده کې د لویدیځ له خوا ختیځ خواته په خپل محور څرخې، د ځمکې وضعې حرکت د بشر په ژوند، شرایطو، نباتاتو او همدارنګه د وخت په ټاکنه کې دلیدلو وړ اهمیت لري.

۳–ځمکه په یو کال ۳۶۵ ورځو او ٦ ساعتونو کې خپل حرکت په بیضوي مدار د لمر په ګرد چاپیره تر سره کوي، د ځمکې د مدار اوږدوالی ۹۳۱ میلیونو کیلو مترو ته نژدې دی، په مدار باندې د ځمکې د حرکت سرعت په یوه ثانیه کې ۳۰ کیلو متره حساب شوی دي.

مشهور انګریزي هیات برادلي په ۱۷۲۷ م کال کې د ځمکې انتقالي حرکت د ستورو د وړانګو د تمایل له مخې ثبوت کړ څکه چې د ستورو د وړانګو تمایل د کال په فصلونو کې د ځمکې انتقالي حرکت پر بنسټ کله زیاتیږي او کله کمیږي.

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ځمکه پنځه ډوله حرکت لري چې له وضعي، انتقالي، نوساني، د ځمکې حرکت د ویگاه د ستوري خواته او په یوه نا معلوم استقامت د سحابي کهکشان په لور د ځمکې له حرکت څخه عبارت دي.

د ځمکې وضعي حرکت د ځمکې له محوري حرکت څخه عبارت دی چې په ۲۴ ساعتو (د ۲۳ ساعتو او ۵٦ دقیقو) کې د لویدیځ له خوا ختیځ ته په خپل محور څرخي.

انتقالي حرکت: هغه څېړنې چې د ساینس او حیات پوهانو په بیلو بیلو پېړیوکې تر سره کړي، ثابته کړې یې ده چې ځمکه په یو کال ۳٦۵ ورځو او ٦ ساعتونو کې خپل حرکت په بیضوي مدار تر سره کوي. ځمکه د نورو جسمونو غونډې د لمر په چاپیره څرخې او د لمریز نظام یوازنۍ سیاره ده چې ژوند پکې کیږي او د ټولو ژوندیو موجوداتو ژوند پکې برابر شوی دی او د ټولو سیارو په نسبت پکې ډیرې څېړنې تر سره شوي دي، لکه: څنگه چې ټول فضایي اجرام حرکت لري ځمکه نوساني حرکت هم لري چې په موضعي توگه د هغې نوسانات لیدل شوي دي، د جغرافیې پوهان له وضعې او انتقالي حرکت سره ډیره علاقه لري، ځکه چې طبیعي او جغرافیې زیاتره پېښې او واقعات د ځمکې د وضعي او انتقالي حرکتونو په پایله کې منځ ته راځي.

# د اووه پنځوسم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | جغرافيايي ټاکل شوي کميتونه (طول البلد او عرض البلد) | |
| ۲-د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د طول البلد او عرض البلد په اړه به معلومات ومومي.<br>ځانگړې موخې:<br>-له طول البلد او عرض البلد سره به اشنايي پيدا کړي.<br>-د طول البلد او عرض البلد دايرى به رسم کړي.<br>-د طول البلد او عرض البلد دايرو په اوصافو به پوه شي<br>-د طول البلد او عرض البلد خطونو په شمير به پوه شي او ورسره به مينه پيدا کړی. | |
| ۳-د تدريس ميتود | توضيحي، ډله ييز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکي لارښود، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافيايي ويديويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوتر سي ډيگانې او انټرنيت. | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶-په ټولگي کې د تدريس او زده‌کړې لومړنې فعاليتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظيمول، د حاضرۍ کنترول، له ټولگي بهر فعاليت ليدل، د تېر لوست ارورنه او د تېر او نوي لوست ترمنځ د اړيکو ټينگول<br>هخوونکي پوښتنه:<br>-د طول البلد او عرض البلد په باره کې معلومات لرئ؟ | وخت ۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
| --- | --- | --- |
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټه خوله د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د طول البلد او عرض البلد په اړه پوښتنې طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره او مهم ټکيوليکئ.<br>–د نقشې يا د ځمکې د کرې له مخې طول البلد او عرض البلد توضيح کړئ<br>–د طول البلد په باره کې ورسره خبرې وکړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ د ټولګي د ننه فعاليت يې وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې پوښتنې وکړئ<br>–د نوي لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعاليت څرګند کړئ. | –د نوي لوست سرليک ته ګوري<br>–نوي لوست په پټه خوله لولي.<br>–د طول البلد او عرض البلد په اړه نظر څرګندوي.<br>–د لوست غوره او مهمې برخې ليکي<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او د خپل ښوونکي څرګندولوته غوږ نيسي<br>–د لوست مهمې برخې ليکي<br>–د ټولګي د ننه ډله ييز فعاليت کې کارنده برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه نوروته د استازې په واسطه وړاندې کوي.<br>–مهمې برخې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه وايي<br>–د نوي لوست لنډيز ته ځيرکيږي او ځانونه ور باندې پوهوي<br>–له ټولګي څخه بهر فعاليت ليکي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–طول البلد يا نصف النهار له هغونيمو دايرو څخه دي چې له شمال قطب څخه پيل او تر جنوب قطب پورې اوږدې شوي او د استوا پر خط عمود دي، دګرينويچ خط چې د لندن له ښار څخه تيريږي، د طول البلدونو پيل دی او د ځمکې کره په دوو نيموختيځو او نيمه لويديځو کرو ويشي

۲–عرض البلد له هغو دايرو څخه عبارت دي چې داستوا له خط سره موازي رسم شوي ختيځ او لويديځ ته غځېدلی د استوا دايره د عرض البلدونو پيل دی، ځمکه يې په دوو نيمه شمالي او جنوبي کره ويشلې ده

۳–د عرض البلد دايرو اوصاف ۱۱ درجې دي چې په کتاب کې شرح شوي دي

۴–د طول البلد دايرو اوصاف ۷ درجې دي چې په کتاب کې شرح شوي دي

۵–ج–۳٦۰ درجې

٦–ب–د ګرينويچ خط

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

فرضي خطونه چې له شمال قطب څخه پيل او تر سويل پورې رسيږي، د طول البلد د خطو (نصف النهار) په نوم ياديږي، څرنگه چې د دايرې محيط (۳٦۰) درجې دی، نو د طول البلدونو ټول شمير (۳٦۰) درجې وي، د طول البلد خط چې دلندن د گرينويچ له ښار څخه تېريږي، د طول البلدونو پيل دی او صفر درجه قبول شوی دی، چې (۱۸۰) درجې طول البلد او عراضی البلد يې دلندن د گرينويچ ختيځ خواته موقعيت لري او د ختيځ طول البلدونو (۱۸۰) درجې نورې يې د گرينويچ لويديځ لورته موقعيت لري، د لويديځو طول البلدونو په نوم ياديږي. د طول البد هره درجه په ٦۰ دقيقو او هره دقيقه يې په ٦۰ ثانيو ويشل کيږي، د طول البلد خطونه په يوازې توگه د نړۍ په بيلو بيلو سيمو کې د وخت توپير ښيي. په نقشه کې د طول البلد او عرض البلد خطونو تقاطع د ځايونو موقعيت ښيي.

د عرض البلد دايروته موازي دايرې هم وايي ځکه چې دغه ټول خطونه له استوا سره موازي خطونه دي چې په نقشه او کره کې په ښکاره ليدل کيږي. عرض البلد هغو دايروته ويل کيږي چې د استوا له خط سره موازي له ختيځ څخه لويديځ خواته يو له بل سره موازي دي او د طول البلد په دايرو عمود دي. څرنگه چې ځمکه کروي ده، د عرض البلد ديره لويه دايره د استوا خط دی او د عرض البلدونو پيل شميرل کيږي، نو ځکه صفر درجه منل شوی دی. د استوا د شمال عرض البلدونو ته شمالي عرض البلدونه وايي چې دN په توري ښودل شوي دي او د استوا د سويل (جنوب) عرض البلدونه د (S)په توري ښودل شوي، د عرض البلد هره درجه په ٦۰ دقيقو اوهره دقيقه په ٦۰ ثانيو ويشل شوې، چې په نقشو کې د درجې د قيقې او ثانيې په حساب پيژندل شويدي (۹۰) درجې عرض البلد په شمالي نيمه کره کې او (۹۰) درجې په جنوبي نيمه کره کې شتون لري، د عرض البلد د دايرو د منځ دايرې ته د استوا خط وايي چې د ځمکې کره يې په دوو مساوي برخو ويشلې ده.

## د اته پنځوسم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | اقليم څه شی دی؟ | |
| ۲–د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–له اقليم پيژندنې سره به اشنايي پيدا کړي.<br>ځانگړې موخې:<br>–د اقليم په اړه به معلومات پيدا کړي<br>–د اقليم له عناصرو او عواملو سره به مينه پيدا کړي<br>–د لندبل او اورښت گراف به رسم کړي | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرگندونې او ډله ييز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافيايي ويديويي، او تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سي ډيگانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي ديادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولگي کې د تدريس او زده کړې لومړنې فعاليتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظيم، د حاضرۍ کنترول، له ټولگي د بهر فعاليت ليدنه، د تېر لوست ارزونه او د تېر او نوې لوست ترمنځ د اړيکو ټينگول.<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–د اقليم او د هغه د عناصرو په اړه څه پوهيږئ؟ | وخت په دقيقو<br>۱۰ دقيقې |

| ۷-د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| -پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>-د پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>- اقلیم څه دی، په اړه یې پوښتنه وکړئ.<br>-د نقشې له مخې اقلیم تشریح کړئ.<br>-پر تختې د لوست غوره او مهمې برخېولیکئ.<br>-زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او په ټولګي کې د هغو فعالیت وټاکئ<br>-د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>-د ارزونې په اړوندپوښتنې طرحه کړئ<br>-د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>-له ټولګي بهر فعالیت څرګند کړئ. | -د نوي لوست سرلیک ته ګوري<br>-نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>-د اقلیم په اړه خپل نظر ښکاره کوي.<br>-نقشې ته پاملرنه کوي او د ښاغلي ښوونکي څرګندونې په غور اوري<br>-تختې ته ګوري<br>-د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې کارنده ونده اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي په مخکې د استازې په واسطه وړاندې کوي.<br>-مهم ټکي او خپلې پوښتنې کوي.<br>-د ارزونې پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>-د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي.<br>-له ټولګي بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸-د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱-اقلیم (Klima) لاتین کلمه ده د یوې سیمې د جوي پدیدو له تمام وسطي حد څخه عبارت دی چې په ټاکلې وخت او ځای کې بیل بېل صفتونه غوره کوي چې د میلان مفهوم وړاندې کوي.

۲-د اقلیم اړوند عناصر د تودوخې درجې، د هوا فشار، د بادونو بهیر، لنده بل او له اورښت څخه عبارت دي.

۳-د اقلیم پېژندنې له پلوه تودوخه او د لمر وړانګو د لګېدو زاویه د ځمکې د سطحې د اقلیم په تغیر کې اساسي رول لري. تودوخې او هغه نور چې له لمر څخه پر ځمکه لګیږي، د انرژۍ او ژوند مولد دی او په هره یوه ثانیه کې ۱۲۶ تریلیون ته نژدې قوه ده، د لمر تودوخې د ځمکې په استقامت را رسیږي، د لمر د وړانګو سرعت په ثانیه کې ۳۰۰۰۰۰ کیلو متره ده چې طیفونه یې د بیلو بیلو موجونو په اوږدوالي ځمکې خواته حرکت کوي، په هغو برخو کې چې د لمر وړانګې عمودي لګیږي.د ځمکې پر سطحې په هر سانتي متر مربع باندې په هره ثانیه کې دوه کالوري تودوخه تولیدوي.

۴-صیحح او غلطپوښتنې د کتاب له مخې حل کړئ.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اقلیم له جغرفیایي موضوعګانو څخه روښانه موضوع ده چې د ټولو بشري او کلتوري فعالیتونو محور جوړوي، د نباتاتو وده، د نفوسو ځای پرځای کېدل، د حیواناتو تیتیدل، همدارنګه د ځمکې د مخ ودانۍ په لومړي پړ اوکې له اقلیم سره مستقیمې اړیکې لري.

د اقلیم پیژندنې د مطالعو له پلوه زیاتره د طبیعت د جبر موضوع په منځ کې ږدي. په دې باره کې د طبیعي او اقلیمي سیمو چاپیریالونه د ژوند د ډول او له انسانانو سره ځانګړې اړیکې ښیي. له هغه ځایه چې د ځمکې د کرویت په نظر کې نیولو سره د طبیعي فکتورونولویه برخه بدلون مومي، په هماغه ترتیب اقلیمي ښلوالی د ځمکې د مخ په بیلو بیلو برخو کې له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته تغیرمنونکی دی، مثلاً ټول هغه حیاتي شرایط چې د استوا له سیمې د قطبونو خواته تغیر کوي په لومړي پړاوکې د هغه یوازنی عامل اقلیم حسابیږي.

## د نهه پنځوسم لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت (یو درسي ساعت)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د بادونو لګېدل | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>– عمومي موخې:<br>– د باد د لګېدو په اړه به بشپړه اشنايي پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>– د باد د لګیدولوری به رسم کړي.<br>– په اقلیم باندې د بادونو په اغیزو به پوه شي<br>– د باد د بهیرد فشار له مرکزونو سره به پوره خبرتیا او بلدتیا ومومي<br>– په اوارو او غرنیو سیمو کې به په لنده بل او اوربښت پوه شي او نوروته به يې معلومات ورکړای شي. | |
| ۳–د تدریس میتود | توضیحي، او ډله ییز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیايي ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي (لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدریس او زده‌کړې لومړني فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ کنترول، له ټولګي بهر فعالیت لیدل، او د نوي اوزاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول.<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا د بادونو د لګېدو په اړه معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–د پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د بادونو د لګېدلو په اړه پوښتنه وکړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره او مهمې برخېولیکئ.<br>–د نقشې له مخې د بادونو لېګدل روښانه کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او دهغو د ټولګي دننه فعالیت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت ځرګند کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله مطالعه کوي.<br>–د بادونو د لګېدو په اړه نظر ځرګندوي.<br>–نقشې ته پاملرنه کوي د ښاغلي ښوونکي ځرګندونې په غور اوري<br>–د ټولګي د ننهپه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي په لارښوونه د استازې په واسطه د ټولګي په مخکې وړاندې کوي.<br>–د مهمو ټکو پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیزته ځیرېږي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فهالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

۱–هغه باد چې په بیلو بیلو مساوي فاصلو کې په لوړ او ټیټ فشار حرکت کوي، په اصطلاح د جیوستروفیک بادونو په نوم یادیږي او تقریباً د ۹۰ درجې زاویې، د هغه د لګېدلو د لوري، د لوړ فشار له مرکز څخه د ټیټ فشار د مرکز په لور حرکت کوي.

۲–دویم لامل چې دبادونو د حرکت لوری کنترولوي(Coriolis) له قوې څخه عبارت دی، په نیمه شمالي او سویلي کره کې د ځمکې د وضعې حرکت په اساس بادونه له خپلې اصلي تګلارې څخه ګرځي.

۳–د فشار د مرکزونو له مخې بادونه په دریوو ډلو ویشل کیږي (استوایي، ختیځ او لویدیځ بادونه).

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د بادونو د حرکت لوري د لوړ او ټیټ فشار د مرکزونو د ایزو بار خطونو لری والی او نژدیوالی د هغو د لګېدو چټکتیا د لیدو وړ اغیزه لري. د بادونو بهیر په عمومي توګه بادونه د لوړ فشار له مرکزونو څخه د ټیټ فشار مرکزونو ته په حرکت راځي. هر کله چې د ایزو بار خطونه سره نژدې وي، د بادونو لګېدل تیزیږي، بر عکس که د ایزوبار خطونه سره لرې وي، د بادونو چټکتیا لږه احساسیږي، هغه باد چې د لوړ او ټیټ فشار له مرکز څخه په مساوي فاصلو حرکت کوي، په اصطلاح د جیوستروفیک د بادونو په نوم یادیږي او ۹۰ درجې زاویې ته نژدې د هغه د لګېدو لوری دلوړ فشار له مرکز څخه د ټیټ فشار د مرکز خواته حرکت کوي.

د اتموسفیر په شتون د ځمکې پر سطحه د فشار د مرکزونو په بدلون کې ډول ډول بادونه رامنځ ته کیږي، د فشار له لوړ مرکز څخه تل د ټیټ فشار د مرکز په لوري بادونه الوزي.

د پام وړ ده چې د باد الوتل د لوړ فشار د مرکزونو له لوري د ټیټ فشار په لوري پر یوه مستقیم خط نه تر سره کیږي بلکې ښي او چپې خواته کږیږي. چې د باد دا انحراف او کږیدل د ځمکې د وضعې حرکت له امله رامنځ ته کیږي، یا په بله وینا په شمالي نیمه کره کې د ساعت د عقرب مخالف بادونه په الوتلو پیل کوي.

د باد د الوتلو کچه د فشار د مرکز په ډیر بدلون ټیټوالي او لوړوالي پورې اړه لري، تیز بادونه ډیر وخت ورانی رامنځ ته کوي، د هریکن او تیفون بادونه یې ښه او ځرګنده بیلګه کیدای شي.

## د شپږم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | د اقلیم اغیزمن لاملونه | |
| ۲-د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي اوذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د اقلیم د اغیزو او لاملونوپه اړهبه بشپړه اشنایي پیدا کول.<br>ځانګړې موخې:<br>-د اقلیم اغیزمن لاملونه به وپیژني.<br>-د اقلیم اساسي عناصر بهیو له بل څخه بیل کړای شي.<br>-په هغو اقلیمي فکتورونو به پوه شي او ورسره به مینه پیدا کړي. | |
| ۳-د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییزکار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکیلارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیګانې او انټرنټ. | |
| ۵-د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶-په ټولګي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ کنټرول، له ټولګي څخه د بهر فعالیت لیدل، د تېر لوست ارزونه، د تیر او نوي لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول | وخت په دقیقو |
| | -هڅوونکي پوښتنه:<br>-د اقلیم د اغیزمنو لاملونو په اړه څه پوهیږئ؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د اقلیم د اغیزمنو لاملونو د ځانګړنې په اړوند پوښتنېوکړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره او مهم ټکیولیکئ.<br>–دنقشېله مخې د اقلیم اغیزمن لاملونه توضیح کړئ<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ د هغو د ټولګي دننه فعالت وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې په اړوند پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي څخه بهر فعالیت روښانه کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري.<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د اقلیم د اغیزمنو لاملونو په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–تختې ته ګوري.<br>–نقشې ته پام اړول او د خپل ښاغلي ښوونکي څرګندونې په غور اوري.<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې کارنده برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د ښوونکي له لارښوونې سره د استازې په واسطه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–د مهمو ټکو په اړوند خپلې پوښتنې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنوته ځوابونه وایي<br>–د لوست لنډیز ته ځیرېږي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځواب:**

**۱–اقلیمي څلور فکتورونه عبارت دي له تودوخې، اوربښت، لنده بل، د هوا فشار او د بادونو لګېدل دي.**

**–د لوست پوښتنې د کتاب له متن سره برابرې نه دي.**

**۱–د ګلخانه یي ګازونو زیاتیدل په نړۍ کې د اوزون د پوړ زیانمن کیدلو سبب شوي دی.**

**–د لمر وړانګې د ځمکې پر مخ په بیلا بیلو زاویو باندې لګیږي. (ص)**

**–په غرنیو لوړو برخو کې د هرو سلو مترو لوړ والې سره تودوخه لوړیږي. (غ)**

**–په افغانستان کې د سایبریا سړې څپې او د هند د سمندر موسیمي تو دې څپې د اقلیم د وچوالي لامل کیږي. (غ)**

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د اقليم پيژندنې پوهانو د اقليم اغيزمن لاملونه په ترتيبسره داسېتر مطالعې لاندې نيولي دي

الف–د اقليم بنستيز عنصرونه

ب–د اقليم اغيزمن لاملونه

د اقليم د بنستيزو عنصرونو په مرسته د يوې سيمې اقليمي ځانګړنې په ښه ډول پيژندل کيږي، له دې امله د اقليم په بدلونونو کې لاندې څلور فکتورونه د يوې سيمې په آب و هوا باندې مستقيمه اغيزه لري، دغه فکتورونه عبارت دي له:

۱–د کال اومياشتې د شپې او ورځې د تودوخې درجه.

۲–د کال او مياشتې په اوږدو کې رطوبت او اورښت.

۳–په نړيوال او سيمه ييز ډول د لوړو او ټيټو فشارونود مرکزونو جوړښت.

۴–په وچه او لنده باندې د بادونو لګېدل او د هغو ډولونه. دلته دغه څلورو اقليمي عنصروته يوازې د نورو مهمو او اغيزمنو لاملونو له مخې پاملرنه کوو چې عبارت دي له:

۱– د لمر د وړانګو د لګېدو زاويه

۲– د عرض البلد درجه

۳– د ځمکې لوړې او جوړښتونه

۴– له بحر څخه لريوالياو نژدېوالی

۵– د بحري جريانونو نوعيت

٦– سيمه ييز بادونه

۷– د تودو او سړو جبهو څرنګوالی

۸– د ګلخانه يي ګازونو پراختيا

۹– د اوزون د طبقېزيانمن کيدل

۱۰– د اورشيندونکو فعاليتونه.

# د یو شپیتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د اقلیم ډولونه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د اقلیم له ډولونو سره به بشپړه اشنایي پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د اقلیم په ډولونو به پوه شي<br>–د اقلیمي سیمو نومونه بهواخیستلی شي<br>–په نقشه کې به په بیلو بیلو سیمو کې د اقلیم ډولونه وښودلی شي او نوروته به یې روښانه کړای شي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې، خبرې اترې، ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډيګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ٦– په ټولګي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ کنټرول، له ټولګي څخه بهر فعالیت لیدل، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زوړ لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا د اقلیم د ډولونو په اړه معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقو | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | –د نوي لوست سرلیک ته گوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د اقلیم د اغیزمنو لاملونو په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–تختې ته پام اړوي او د خپل ښاغلي ښوونکي څرگندونې په غور اوري<br>–د ټولگي په ډله ییزو فعالیتونو کې کارنده ونده اخلي او د خپلې ډلې نظر د استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولگي مخکې نورو زده‌کوونکو ته وړاندې کوي.<br>–د خپلو ستونزو په اړوند پوښتنې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنوته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته ځیرېږي چې پوه شي<br>–له ټولگي څخه بهر فعالیت لیکي | –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>– د اقلیم په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره او مهمې برخې‌ولیکئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولگي دننه فعالیت یې وټاکئ.<br>د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې په اړوندپوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولگي څخه بهر فعالیت روښانه کړئ. |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–(ب) ځواب سم دی $\frac{1}{2}$۲۳ درجې او $\frac{1}{2}$۶۶ درجې

۲–(ب) ځواب سم دی له ختیځ څخه د لویدځ خواته

۳–معتدله اقلیم د **۳۵**–او **۵۰** درجو ترمنځ عرض البلدونو کې د ی، له تروپیک او قطبي دواړو خواو څخه اغیزمن کیږي.

۴–د منځنیو عرض البلدونو معتدله اقلیم په پنځو برخو ویشل شوی دی.

–د استوایي لاندې مرطوب اقلیم

–وچ او د لویدیځو سواحلو اقلیم

–له وچ اوړي سره د مدیترانې یا استوایي سیمې اقلیم

–دښتې او دستپ سیمې معتدله اقلیم

–د معتدله سیمې مرطوب او وچ اقلیم

۵–په دوو شمالي او جنوبي نیمو کرو کې د استوایي لاندې د **۲۵–۳۰** درجو ترمنځ عرض البلدونو اقلیم

**۹-د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اقليم زيات ډولونه لري چې د حاره يا گرمې سيمې اقليم، د معتدلې سيمې اقليم د منځنيو عرض البلدونو د استوا لاندې مرطوب اقليم، د لويديځو سواحلو اقليم، مديترانه يي اقليم، صحرايي اقليم، د معتدلې سيمې، ستپ، وچ او لوند اقليم، قطبي سوړ او د غرنيو لوړو سيمو اقليم، قطبي لاندې وچ اقليم، د تندرا سيمه، يخچالي اقليم او د غرنيو سيمو له اقليم څخه عبارت دی. د صنعتي توليداتو په زيات والي، د سون مواد زياتې کاروني، د نفوس زيات والي، د گل خانه يې غازونو زيات والي د ۱۹۸۰ کال را په دې خوا د ځمکې د تودوخې درجه مخ پر زياتيدو ده. د اقليم پيژندونکو د محاسبې له مخې هر کال يوه درجهد سانتي گراد د ځمکې تودوخه لوړيږي، چې د هغې منفي اغيزې د قطبي او غرنيو يخچالونو کې تر سترگوکيږي. له دي سره سم اوږده وچ کالی، تر ځمکې لاندې د اوبو کمښت، د فلوريدا، دنمارک، او سليون د سواحلو تر اوبو لاندې کيدل د دې هيوادونو اوسيدونکو او ټولې نړۍ ته سترگواښ دی، ځکه د ځمکې د تودوخې د درجې لوړيدل Global Warming دوام لري، چې په راتلونکي کې به ستره فاجعه رامنځ ته کړي.

د سونامي موضوع چې د ځمکې د گرميدو زاويه ده، په دوو ورستيوو لسيزو کې يې د آسيا سويلي او ختيځ سواحل له گواښ سره مخامخ کړيدي، امکان لري چې د نړۍ د اقليم ځانگړتيا وې تر يوې اندازې بدلون وکړي.

## د دوه شپیتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د اتموسفير پوړونه (طبقې) | |
| ۲–د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د اتموسفير له پوړونو سره به پشره اشنايي پيدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د اتموسفير د پوړونوپه اړه به معلومات تر لاسه کړي<br>–له تروپوسفير طبقې او ستراتوسفير طبقې سره به اشنا شي<br>–د ميزوسفير طبقه او د ترموسفير طبقې توپيربه وکړای شي او نوروته به يې روښانه کړي<br>–له اکزوسفير طبقې سره به اشنا شي. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرګندونې، خبرې اترې، ډله ييزكار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافيايي ويډيويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سي ډيګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحريري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدريس او زده‌کړې لومړنې فعاليتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ کنترول، له ټولګي څخه بهر فعاليت ليدل، د تېر لوست ارزونه، د نوي اوزاړه لوست ترمنځ اړيکو ټينګول.<br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–د اتموسفير د پوړونو په اړه معلومات لرئ؟ | وخت په دقيقو<br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د مطالعې سپارښتنه وکړئ.<br>–د اتموسفیر د پوړو په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره او مهمې برخېولیکئ.<br>–د نقشې له مخې د اتموسفیر پوړونه توضیح کړئ.<br>–ز ده کوونکي په ډلو وویشئ د هغوی د ټولګي د ننه فعالیت وټاکئ<br>–دزده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ.<br>– دارزونې پوښتنې مطرح کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ.<br>–له ټولګیو بهر فعالیت څرګند کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د اتموسفیر د پوړونو په اړه به نظر ښکاره کوي.<br>–تختې ته ګوري<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او دښاغلي ښوونکي څرګندونې په غور اوري<br>–د ټولګي د ننه په ډله ییزو فعالیتونو کې کارنده ونډه اخلي او د خپلې ډلې استازی د تختې مخې ته لیږي چې د ډلې نظر نوروته وړاندې کړي.<br>–د ستونزمنو ټکو او پوښتنو طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنوته ځوابونه وايي<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–د تروپوسفیر په ترکیب کې ۲۱٪ د اوکسیجن غاز، ۷۸٪ نایتروجن، ۰,۹۳٪ ارګن، ۰,۰۳٪ کاربن ډای اکساید وي.

۲–د اوزون پوړ په استراتوسفیر پوړ کې پروت دی.

۳–د ایونوسفیر پوړ د اتموسفیر ډیر تود پوړ دی چې د ترموسفیر په نوم هم یادیږي.

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اتموسفیر په بیلو بیلو پوړونو تشکیلیږي چې عبارت دی له:

۱–د تروپو سفیر طبقه

۲–د ستراتوسفیر طبقه

۳–د مزو سفیر او یا منځني پوړ (طبقه)

۴–د ترموسفیر پوړ (طبقه)

۵–د اکزوسفیر پوړ

د تروفوسفیر د پوړ ارزښت په دې کې دی چې د ځمکې حرارت د ګلخانې غوندي د نباتاتو، حیواناتو او انسانانو لپاره په معیاری اندازه ساتي او اورښتونه هم په همدی پوړ کې کیږي.

د اوزون پوړ د ماوراي بنفش وړانګو له راتللو څخه مخنیوي کوي.

د ستراتوسفیر پوړ د الوتکو د الوتلو لپاره ښه برابر ده.

## د درې شپېتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د ځمکې اتموسفیر | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي به د تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د اتموسفیر په اړه به بشپړه اشنایي پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د ځمکې له اتموسفیر سره به بلدتیا پیدا کړي<br>–د انسانانو، حیواناتو او نباتاتو په ژوند کې به د اتموسفیر په رول وپوهېږي او نوروته به یې معلومات ورکړي.<br>د اوزون د پوړ په هکله چې له بنفش ځخه هغه خوا وړانګو د راتللو مخنیوي کوي مینه به پیدا کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې او ډله ییز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي او وسیلې | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکیلارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، تلویزیوني فلمونه، د کمپیوتر سي ډي ګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي (لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ کنترول، له ټولګي ځخه بهر فعالیت کتل، د تېر لوست ارزونه او د نوي اوزاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه<br>–د ځمکې د اتموسفیر په باره کې څه معلومات لرئ؟ | وخت په دقیقو<br><br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–په پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د ځمکې د اتموسفير په اړه پوښتنه وکړئ.<br>–د نقشې له مخې د ځمکې اتموسفير توضيح کړئ.<br>–د لوست غوره او مهم ټکي پر تختېوليکئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او دهغو د ټولگي د ننه فعاليت وټاکئ<br>–پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې په باب پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولگي بهر فعاليت روښانه کړئ. | –د نوي لوست سرليک ته گوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د ځمکې د اتوسفير په اړه نظر څرگندوي<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او دښاغلي ښوونکي توضيحات په غور اوري<br>–تختې ته گوري<br>–د ټولگي د ننهپه ډله ييز فعاليت کې کارنده برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولگي مخکې څرگندوي.<br>–د مهمو برخو او خپلو پوښتنو څرگندونه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډيز ته ځيريږي چې پوه شي<br>–له ټولگي بهر فعاليت ليکي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–د تروپوسفير په پوړ (طبقه) کې د غازونو د سلنېه ترکيب کې اوکسيجن ۲۱فيصده، نايتروجن ۷۸ فيصده، ارگن ۰.۹۳فيصده، کاربن ډای اکسايد غاز۰.۰۳ فيصده دی.

۲–گلخانه يي غازونو کاربن داي اوکسايډ، $co_2$، متان او کلورو فلورو کاربن دی چې د اوزون د پوړ د خرابيدو لپاره زيانمن دی.

۳–د تروپوسفير په پوړ کې د فشار اندازه په چټکۍ را کښته کيږي که د سمندرپر مخ ۷۶۰ ملي متره وي، د هوا د ۱۲ کيلو مترو په لوړ والي کې زر ځلې راکښته کيږي.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اتموسفير هغه غازي کره ده چې د ځمکې د سيارې شاوخوا يې پوښلې ده، د ځمکې په خارجې قشر کې ژوندي موجودات او نباتات دي چې د بايوسفير په نامه ياديږي او انساني ژوند د همدغې سيمې برخه ده چې د اتموسفير په قاعده او د ځمکې په سطحه کې ژوند کوي، د اتموسفير موجوديت د انسانانو، حيواناتو او نباتاتو د پايښت باعث کيږي او د ژوند لپاره يې لاره برابره کړې ده، د ځمکې اتموسفير ۱۳۰۰۰ کيلومتره پنډوالی لري، خو په قطبونو کې يې پنډوالی لږ دی.
د اوبو سايکل د اتموسفير په شتون کې بشپړيږي، په دې معنا چې اوبه په اتموسفير کې راټوليږي، سړيږي، په پايله کې وريځ جوړوي، کله چې د اشباع نقطې ته رسيږي، د باران د اوريدو لامل کيږي، جاري او روانې اوبه جوړوي، د اتموسفير په شتون او لوړ فشار کې رامنځ ته کيږي، له يوې سيمې بلې سيمې ته د بادونو د الوتلو سبب کيږي، په اتموسفير کې د اوبو پر سايکل سربيره د کاربن ۱۴ د فوتو سنتيز عمليه او د نايتروجن سايکل رامنځ ته کيږي، اتموسفير له گلخانه يي غازونو څخه د يوې طبقې په بڼه جوړيږي او د ځمکې تودوخه ساتي. که چيرې اتموسفير شتون و نه لري، د باد الوتل نه رامنځ ته کيږي، د مياشتې (سپوږمۍ) د فضا په شان ټول شيان د سکون په حالت کې پاتې کيږي.
د اتموسفير په شتون کې استوايي، ختيځ او لوديځ بادونه ټول رامنځ ته کيږي چې هريو په ځانگړي اقليمي سيمه ځانگړي اغيزه لري.

# د څلور شپېتم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | په اقليم کې د اتموسفير ارزښت | |
| ۲-د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدريس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-په اقليم کې د اتموسفير د ارزښت په اړه به معلومات پيدا کړي<br>ځانگړې موخې:<br>-په اقليم کې به د اتموسفير له نقش سره اشنايي تر لاسه کړي<br>-د انسانانو په ژوند کې به د اتموسفير برخه او د اوکسيجن گټور توب وپيژني<br>-د انسانانو په ژوند کې به د اوزون د طبقې په رول پوه شي او نوروته به يې تشريح کړي. | |
| ۳-د تدريس ميتود | څرگندونې او ډله ييز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکيلارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافيايي ويديويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سي ډي گانې او انټرنټ. | |
| ۵-د ارزونې لارې | شفاهي او تحريري( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولگي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ٦-په ټولگي کې د تدريس او زده کړې لومړنې فعاليتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظيم، د حاضرۍ-کنترول، له ټولگي څخه بهر فعاليت ليدنه، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ د اړيکو ټينگول. | وخت په دقيقو |
| | -هڅوونکي پوښتنه:<br>-ايا پوهيږئ چې اتموسفير په اقليم کې څه اغيزه لري؟ | ۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د اقلیم د اغیزمنو لاملونو پوښتنه طرحه کړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره او مهم ټکیولیکئ.<br>–د نقشې له مخې د اقلیم اغیزمن لاملونه توضیح کړئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وویشئ د هغو د ټولګي د نه فعالیت روښانه کړئ.<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې په باب پوښتنې طرحه کړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت روښانه کړئ. | –تختې ته ګوري.<br>–نوی لوست په چو په خوله لولي.<br>–په اقلیم کې د اتموسفیر په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–تختې ته په غور ګوري<br>–نقشې ته پاملرنه کوي د ښوونکي توضیحات په غوره اوري<br>–د ټولګي د ننه په ډله ییز فعالیت کې کارنده برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–ستونزې او خپلې پوښتنې مطرح کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته ځیرېږي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–په اتموسفیر کې د اکسیجن شتون په وچو او لندو کې د ژوند د دوام سبب کیږي، انسانان په مستقیم ډول هغه تنفس کوي. بحري حیوانات خپل اوکسیجن له اوبو څخه اخلي، نباتات په ورځ کې اوبه دریښو په واسطه او کاربن دای اکساید له هوا څخه اخلي او د لمر په شتون کې کاربو هایدریت جوړوي، هغه تغذیه کوي، دغه عملیه د فوتوسنتیز په نامه یادیږي.

۲–د لوړ او ټیټ فشار د مرکزونو شتون د استوایي بادونو لګېدل، د قطبونو خواته کوي، په همدې ترتیب قطبي بادونه او سړه جبه ټول د اتموسفیر او د لمر د تودوخې زیږنده ده

۳–د هوا تودوخه او سوړوالې د لوړ او ټیټ فشارونو د مرکزونو د منځته راتللو سبب کیږي، سړه هوا (لوړ فشار) د تودې هوا د مرکز د هر لوري (ټیټ فشار) تل د بادونو حرکت منځته راوړي.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اتموسفیر د ځمکې له مهمو پدیدو څخه دی، د یوې لفافي په ډول یې د ځمکې کره پوښلې ده. اتموسفیر د ژوندیو موجوداتو لپاره حیاتي رول لوبوي، د نړۍ او سیمه ییز اقلیم د کنټرول له لاملونو څخه ګڼل کیږي.

اوکسیجن او نایتروجن دواړه د ځمکې پر مخ د ژوند په دوام کې ټاکونکی رول لري، ځینې نور مواد چې د تیرس غازونو په نوم یادیږي، هغه هم د انسانانو د ژوند د دوام لپاره ځانګړې ارزښت لري، لنډه دا چې اتموسفیر په ژوند کې یو ټاکونکي عنصر دی، چې پرته له هغه کوم ژوندي موجود د ځمکې پر مخ خپل ژوند ته دوام نه شي ورکولي، د اتموسفیر شتون د بنفش شعاوو د راتلو مخه نیسي او د هغه له زیانونو څخه انسانان او نورو ژوندي موجودات ساتي.

بله دا چې د اتموسفیر په شتون کې غږونه تر سره کیږي، د رادیو، تلویزیون او د ټولو مخابراتي وسایلو موجونه غښتلي کوي او د پیغامونو د رسیدو لامل ګرځي.

## د پنځه شپیتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د هوا پیژندنې د سنجش او لیدلو وسیلې | |
| ۲–د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پاې کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د هوا پیژندنې د لیدلو او سنجش له وسیلو سره به بشپړه اشنایي پیدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د هوا پیژندنې د لیدلو او سنجش له وسیلو سره به اشنا شي.<br>–د هوا پیژندنې د لیدلو او سنجش له وسیلو او آلاتو سره به اشنایي حاصله کړي.<br>–د هوا پیژندنې دلیدو او سنجش پخوانۍ او اوسنۍ وسیلې بهیو له بله سره بیلې کړي. | |
| ۳–د تدریس میتود | څرګندونې، ډله ییز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکیلارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي، او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | تحریري او شفاهي ( لنډ ځوابه پوښتنې)، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدریس او زده کړې لومړنې فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ کنترول، له ټولګي څخه بهر فعالیت کتنه، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول. | وخت په دقیقو |
| | –هڅوونکي پوښتنه<br>–د هوا پیژندنې د لیدلو او سنجش د وسیلو په باره کې څه پوهیږئ؟ | ۱۰ دقیقې |



| ۷–د ښوونکي د تدريس فعاليتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعاليتونه | وخت په دقيقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرليک وليکئ.<br>–د چوبې خولې د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د هوا پيژندنې د ليدنو او سنجولو د وسيلو په اړه پوښتنه وکړئ.<br>–د هوا پيژندنې د نقشو له مخې د هوا پيژندنې د ليدلو او سنجولو وسيلې توضيح کړئ.<br>–پر تخته‌د لوست غوره اومهم ټکيوليکئ.<br>–زده‌کوونکي په ډلو وويشئ او د ټولګي د ننه فعاليت يې وټاکئ<br>–د ډله ييز کار لارښوونه او څارنه وکړئ<br>–د لوست د پای پوښتنې وکړئ<br>–د زده‌کوونکو له ځوابونو نتيجه واخلئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د لوست د ارزونې په باب پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډيز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي د بهر کار څرګند کړئ. | –تختې ته په مينه ګوري<br>–نوی لوست په چوپه خوله لولي.<br>–د هوا پيژندنې دليدنو او سنجولو د وسيلو په اړه نظر څرګندوي.<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او د محترم ښوونکي څرګندونې په غوره اوري<br>–تختې ته ګوري<br>–پوښتنوته ځوابونه وايي<br>–د خپلو ستونزو پهاړوند پوښتنېکوي.<br>–د ټولګي په د ننه ډله ييز فعاليت کې کارنده برخه اخلي او د ډلې نظر د استازې پواسطه د ښوونکې په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–د لوست د ارزونو پوښتنو ته ځوابونهورکوي.<br>–د لوست لنډيز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعاليت ليکي. | ۳۵ دقيقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

**۱–د – ترمامير سم دی.**

**۲–ب–باروګراف سم دی.**

**۳–د مصنوعي سپوږمکيو د ځمکې په سطحه کې د پراخه ليدلو ساحه لري. په اتومات ډول جوي حالت د نړۍ او سيمې په سطحه د هر هېواد لپاره معلومات ورکوي.د مصنوعيسپوږمکيو شبکه د هوايي ډګرونو. د الوتکو د الوتنې، د لويوبيړيو د تګلارې، د کرنې د لارښوونې، خروبولو د ژوند په چاپيريالکې د ژوند د ساتنې ځنګلونو او د سيلابونو، څړځايونو، صحرايي کېدلو د خطر طبيعي پېښې سونامې، هريکن او تيفون لپاره بشپړ معلومات ورکوي، تر څو چې اورګانونه او مسؤول خلک عمومي تدبيرونه ونيسي.**

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د ساینس او تکنالوژۍ له پراختیا سره د هوا پیژندنېد څیړلو وسیلو تکامل وکړ، دغه وسیلې ډول ډول او هر رنګه رامنځ ته شوي. د ۱۹ پیړۍ په پیل کې د هوا پیژندنې ستیشنونه مختصر او ساده وو، په ورو ورو د تودوخې اندازه کولو اتومات او الکترونیکی، باد سنجولو، د فشار د سنجولو او لنده بل وسیلې په هوا پیژندنې کې ځای شوې دي. د هوا پیژندنې د شبکې وسایل او الات اوس مهال په نړیواله کچه کارول کیږي، د امریکا متحده ایالاتو مصنوعي سپوږمکۍ د هوا پیژندني ټول الکتروني وسایل او الات له ځان سره لري، چې د نړۍ له هرې برخې تیریږي، ټولې جوي ځانګړنې ثبت او ریکارد کوي اود ناسا NASA مرکز ته یې لیږدوي. دناسا مرکز همدغه معلومات او مشاهدات اروپایي هیوادونو، امریکا، جاپان، او هاوایي ټاپو ته په معلوم او ټاکلي وخت کې معلومات ورکوي، د دې معلوماتو پر بنسټ په ټوله نړۍ کې د هوا او جوي وضعیت په اړوند وړاند وینه(پیش ګوي) کیږي، دا ډول څیړنې انګلستان، جرمني، فرانسه او د چین، جاپان او د هند یوه مصنوعي سپوږمکۍ یې هم تر سره کوي. چې خپل معلومات په اتوماتیک ډول هغو هیوادونو ته چې ور سره معلوماتي راکړه ورکړه لري، لیږدوي.

که چیرې ځینې هیوادونه د رادارو Radar په واسط دا معلومات په سیمه ییزه کچه راټولوي او د هوا په وړاند وینه کې له هغه کار اخلي په ځانګړي ډول د سونامي په طوفانونو، هریکن، تورنادو، تیفون او د هوا حرکت په ټولو جبهو کې له ټولو ځانګړتیا وو سره پیش ګویې کوي، اوس مهال دا ډول مصنوعي سپوږمکۍ ځمکې ته د نږدې سیارو د هوا وضعیت هم تر څیړنې لاندې نیسي.

## د شپږ شپیتم لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت (یو درسي ساعت)**

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>۱–د لوست موضوع</td><td colspan="2">د با د منځ ته راتلو څرنګوالی</td></tr>
<tr><td>۲–د زده‌کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې.</td><td colspan="2">ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د باد د منځ ته راتلو په اړه به بشپړمعلومات ترلاسه کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د باد د پیدا کېدو په اړه به پوهه پیدا کړي<br>–په وچه او اوبو کې به د باد ډولونه وپیژني<br>–د بادونو په ګټې او زیانونو به پوه شي<br>–د سیمه ییزو بادونو په لګېدلو به پوه شي، دهغو له زیانه څخه به خبر شي او نوروته به یې معلومات وړاندې کړي.</td></tr>
<tr><td>۳–د تدریس میتود</td><td colspan="2">د لوست توضیح او ډله ییز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه</td></tr>
<tr><td>۴–د تدریس اړین توکي</td><td colspan="2">کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکي لارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیګانې او انټرنټ.</td></tr>
<tr><td>۵–د ارزونې لارې</td><td colspan="2">شفاهي، تحریري لنډ ځوابه پوښتنې، د ټولګي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦–په ټولګي کې د تدریس او زده‌کړې لومړنې فعالیتونه.</td><td>سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ کنټرول، له ټولګي څخه د بهر فعالیت کتل، د تېر لوست ارزونه، د نوي اوزاړه لوست ترمنځ د اړیکو ټینګول.</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ایا پوهیږې چې بادونه څه وخت منځ ته راځي؟</td><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>



| ۷–دښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په چوپه خوله د لوستلو سپارښتنه وکړئ.<br>–د باد د رامنځ ته کېدو په اړه پوښتنه وکړئ.<br>–پر تختې د لوست غوره اومهمې برخېولیکئ.<br>–د کار په بیلوبیلو فصلونو کې د باد د لګېدو لورى په نقشه کې د باد د رامنځ ته کېدو څرنګوالی او د باد ډولونه توضیح کړئ<br>–دا چې بادونه څنګه رامنځ ته کیږي، خپلو منځو کې پرې خبرې وکړئ<br>–ز ده کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي د ننه فعالیت یې وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې په باب پوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت څرګند کړئ | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري.<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د باد د رامنځ ته کېدو په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–تختې ته ګوري او مهمې برخې یې لیکي.<br>–نقشې ته پاملرنه کوي او د محترم ښوونکي څرګندونو ته په غور غوږ نیسي.<br>–د باد د رامنځ ته کېدو په اړه له ښوونکي سره په خبرو کې ونډه اخلي.<br>–د ټولګي په د ننه ډله ییزو فعالیتونو کې کارنده برخه اخلي او د ډلې نظر د استازې په واسطه د ښوونکي له لارښوونو سره سم د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–د ستونزو او مهمو برخو پوښتنې کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته ځیرېږي چې پوه شي.<br>–له ټولګي بهر فعالیت په کور کې تر سره کوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–بادونه د لوړ او ټیټ فشار د مرکزونو د اختلاف له مخې رامنځ ته کیږي. کله چې د ټیټ فشار د مرکزونو هوا د تودوخې په اثر پورته لوړه شي، د لوړ فشار د مرکزونو هوا چې نسبتاً سړه ده د هغې ځای نیسي، په پایله کې د سیمه ییزو، قاره یي او یا د ځمکې د کرې په مقیاس بېل بېل بادونه رامنځ ته کیږي.

۲–بادونه په پنځه ډوله دي.

۳–تیفون او هریکن بادونه، له سیمه ییزو بادونو څخه دي چې په اندازه کې ډیر کم وي، خو سرعت او دوراني زوریې ډیروي، د هریکن بادونه زیاتره د فلوریدا په سواحلو او د تکزاس په سیمو کې منځ ته راځي، چې هرکال د ودانیو د خرابیدو او د کرنیزو حاصلاتو له منځه تللو سبب کیږي، د تیفون بادونه د چین به ختیځو سواحلو کې رامنځ ته کیږي چې د هغې سیمې د اوسېدونکو د زیانمن کېدو سبب کیږي، همدارنګه ځینې ساري ناروغۍ له یوې سیمې بلې سیمې ته لیږدوي که له سونامي سره یو ځای شي، د زرګونو خلکو د وژلو او د کورونو د وراني سبب کیږي

۴–تجارتي بادونه په شمالي نیمه کره او سویلی نیمه کره کې د ۵–۳۰ درجو عرض البلدونو په منځ کې پیدا کیږي، له شمال ختیځ څخه د سویل لویدیځ خواته حرکت کوي خو په سویلي نیمه کره کې یې د حرکت لورى له سویل ختیځ د شمال لویدیځ خواته کیږي. د تجارتي بادونو د لګېدو سیمې په اطلس اوقیانوس او بحر الکاهل کې دي چې په ۱۵–۱۶ پیړیو کې چې په بیړۍ چلولو کې زیات ارزښت درلود. چې د شمال او سویل تجارتي مالونه سره بد لبدل.

۵–د لوړ او ټیټ فشار د مرکزونو د توپیر په سبب بادونه منځته راځي.

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

بادونه تل د لوړ فشار له مرکز څخه د ټيټ فشار خواته لګيږي، په هوا پيژندنه کې د باد کلمه د هوا پراخه بهيرته ويل کيږي چې کيدای شي، د ځمکې په سطحه يا په ازاده فضا کې د ځمکې د سطحې په يو کيلومترۍ کې) شتون ولري. د هوا طبيعي بهيرونه جريانونه ډيرکم په يو ډول وي، دا ډول ګرد بادونه د ساعت له عقربې سره موافق يا مخالف وي، په بيلا بيلو ښو او ځانګړي ځانګړتيا پراخوالی پيدا کوي.

باد د بيل بيل لوری او سرعت لرونکي دی، د باد لوری هغې خواته ويل کيږي چې باد له هغې پلو راځي.د ځمکې د سطحې د باد سرعت د ځمکې د وضعي حرکت تر اغيزې لاندې راځي، په تصوير يا انځور کې د بادونو جوړښت ته پاملرنه وشي، په نيمه شمالي کره کې هغه بادونه چې د لوړ فشار له مرکز څخه د ټيټ فشار د مرکز خواته حرکت کوي، د ځمکې د وضعي حرکت د اغيزو له امله هميشه ښي خواته ميل لري او په جنوبي نيمه کره کې يې چپې خواته. د استوا په برخه کې هغه مهال چې له $23\frac{1}{2}$درجو عرض البلدونو څخه د استوا خط پر لور حرکت کوي، ښي خواته خپل لوری ته بدلون ورکوي، کله چې له جنوبي نيمې کرې څخه د استوا خط خواته الوزي، چپې خواته خپل لوري ته بدلون ورکوي، په پايله کې استوا ته نيږدې بادونه د استوا له خط سره موازي بادونه وي.

تند بادونه د لوړ فشار د مرکز له سيمې او ټيټ فشار له ساحې څخه را پيدا کيږي هر څومره د فشار توپير زيات وي، سرعت او د باد شدت په همغه اندازه زياتيږي.

## د اووه شپیتم لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس وخت (یو درسي ساعت)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | وریځې جوړېدنېCLOUDS | |
| ۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې. | ز ده کوونکي بهد تدریس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>-عمومي موخې:<br>-د ورېځو د ډولونو له جوړیدنې سره به اشناشي.<br>ځانگړې موخې:<br>-زده کوونکي به پوه شي چې وریځ څنگه جوړیږي؟<br>-د وریځوډولونه به وپیژني.<br>-د وریځو شکلونه به یوه له بلې توپیر کړاي شي او نوروته به یې معلومات وړاندې کړي. | |
| ۳-د تدریس میتود | څرگندونې، ډله ییزکار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴-د تدریس اړین توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دښوونکیلارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوټر سي ډیگانې او انټرنټ. | |
| ۵-د ارزونې لارې | شفاهي او تحریري لنډ ځوابه پوښتنې، د ټولگي د ننه فعالیت ارزونه، د ښوونکي د یادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ٦-په ټولگي کې د تدریس او زده کړې لومړني فعالیتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولگي تنظیم، د حاضرۍ کنترول، له ټولگي د بهر کار لیدنه، د تېر لوست ارزونه، د نوي او زاړه لوست ترمنځ اړیکې ټینگول.<br>-هځوونکي پوښتنه:<br>-په آسمان کې څه وخت وریځ جوړیږي؟ | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د نوي لوست د لوستلو لارښوونه وکړئ.<br>–د وریځو د جوړېد په اړه پوښتنه وکړئ.<br>–پر تختې غوره او مهمې برخېولیکئ.<br>–په نقشې کې د کال په بیلو بیلو فصلونو کې د وریځو جوړېدل توضیح کړئ<br>–دا چې وریځې څنګه جوړیږي خبرې پرې وکړئ<br>–ز ده کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي د ننه فعالیت یې وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د اروزنې په باپپوښتنې وکړئ<br>–د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت روښانه کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د وریځو د جوړېدو په اړه نظر څرګندوي<br>–د نوي لوست غوره او مهمې برخې لیکي<br>–نقشې ته په غور ګوري او د محترم ښوونکي څرګندونې په غور اوري<br>–د وریځو د جوړېدو په اړه له ښاغلې ښوونکي سره خبرې کوي.<br>–د ټولګي د ننه ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او د خپلې ډلې نظر د استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–خپلې ستونزې او پوښتنې طرحه کوي.<br>–د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>–د لوست لنډیز ته پاملرنه کوي چې پوه شي<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱–وریځ په فضا کې د اوبو د بړاسونو د یو ځای کېدو په اثر منځ ته راځي چې د لمر د تودوخې او د جهیلونو، د سمندرونو دریابونو او د نباتاتو د پاڼو د اوبو بړاس (بخار) له ځمکې پورته کیږي، تودیږي، له بله پلوه د هوا د لوړې جبې د سړېدوله مخې چې د اوبو بړاسونه د تکاثف په واسطه د هایدروسکوپي هستو په شاوخوا کې راټولیږي، په طبیعت کې د وریځو بیل بیل ډولونه رامنځ ته کوي.

۲–وریځې په ۱۵ ډولو دي چې دوه ډولونه یې له ستراتوس او کومولوس څخه عبارت دي.

۳–د بنو په شان وریځې یا سیروس په فضا کې د بنو په بنه لیدل کیږي او د بنکې په بنه یا سیرو کومولوس د سپین رنګه نازکو پر دو غونډې په فضا کې رامنځ ته کیږي

۴–هرمي او ګنبده.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

وربځې په اتموسفير کې د اوبو د بړاس په واسطه منځ ته راځي، دغه بړاسونه د تروپوسفير په لوړوالي کې سره نژ دې کيږي ښېلې ښېلې وريځې جوړوي، په استوايي توده هوا کې د اوبو د بړاسونو ځای نيونه ډېره ده او په سړه هوا کې کمه ده. د سړې او تودې هوا جبهې ښېلې وې او په هره جبهه کې د هوا کتلې ښېلې ښېلې وربځې رامنځ ته کوي. د سړې هوا په جبه کې د کولونيمبوس وريځ جوړيږي چې د دغو وربځو تورې کتلې سخت تيز بارانونه رامنځ ته کوي او له نيمبوس څخه پورته د کومولوس وريځ منځ ته راځي. د رنګ خړوالی يې کم او د ګنبدي او هرم غونډې دی هغه توده هوا چې د سړې څپې د فشار په واسطه پرمخ ځي، يوه په بلې پسې په سړې هوا باندې اوړي. کله چې توده هوا د لوړوالي په سبب خپله تودوخه له لاسه ورکړي، د ستراتوس وريځو د جوړيدو سبب کيږي چې د کوچنيو او لويو طبقو ښه غوره کوي.

## د اته شپيتم لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس وخت (يو درسي ساعت)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| ۱–د لوست موضوع | د لوړتيا له مخې د اورښت بدلونونه | |
| ۲–د زده‌کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې. | زده کوونکي بهد تدريس په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>–عمومي موخې:<br>–د لوړ والي له مخې به د اورښتونو له بدلونونوسره اشنايي پيدا کړي.<br>ځانګړې موخې:<br>–د لوړ والي له مخې به د اورښتونو په بدلونونو پوه شي<br>–د اورښتونو د بهير او د اوبو په دوران به وپوهيږي او ور سره مينه به پيدا کړي.<br>–په ژوند کې به د اورښتونو په ارزښتوپوهيږي<br>–په نقشه کې به سړې او تودې سيمې وښودلی شي او نور به هم پرې پوه کړي. | |
| ۳–د تدريس ميتود | څرګندونې، ډله ييز کار، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴–د تدريس اړين توکي | کتاب، تخته، تباشير، دښوونکيلارښود کتاب، په لوست پورې اړوند انځورونه، که شوني وي جغرافيايي ويډيويي، تلويزيوني فلمونه، د کمپيوټر سي ډيګانې او انټرنټ. | |
| ۵–د ارزونې لارې | شفاهي، تحريري لنډ ځوابه پوښتنې، د ټولګي د ننه فعاليت ارزونه، د ښوونکي ديادداشت کتابچه او عملي کار. | |
| ۶–په ټولګي کې د تدريس او زده‌کړې لومړنې فعاليتونه. | سلام اچول، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ کنترول، له ټولګي بهر فعاليت کتنه، د تېر لوست ارزونه، د زوړ او نوي لوست ترمنځ د اړيکو ټينګول.<br><br>–هڅوونکي پوښتنه:<br>–ولې د ځمکې د کرې په ټولو برخو کې اورښتونه توپير لري؟ | وخت په دقيقو<br><br>۱۰ دقيقې |

| ۷–د ښوونکي د تدریس فعالیتونه | د زده‌کوونکو د زده‌کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| –پر تختې د نوي لوست سرلیک ولیکئ.<br>–په پټه خوله د نوي لوست د لوستلو لارښوونه وکړئ.<br>–د اورښتونو د بدلونونو په اړه پوښتنې وکړئ.<br>–د نقشې له مخې بارانیسیمې توضیح کړئ.<br>–دا چې اورښت په اب و هوا څه اغیزه لري خبرې او بحث پرې وکړئ<br>–پر تختې غوره او مهمې برخې‌ولیکئ.<br>–د نقشې له مخې د اقلیم اغیزمن لاملونه توضیح کړئ<br>–ز ده کوونکي په ډلو وویشئ او د ټولګي دننه فعالیت یې وټاکئ<br>–د زده‌کوونکو ستونزې او پوښتنې حل کړئ<br>–د ارزونې په باب پوښتنې وکړئ<br>د لوست لنډیز وړاندې کړئ<br>–له ټولګي بهر فعالیت روښانه کړئ. | –د نوي لوست سرلیک ته ګوري<br>–نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>–د اورښتونو په اړه نظر ښکاره کوي.<br>–د اورښتونو د بدلونونو په اړه نظر ورکوي.<br>–نقشې ته ګوري او د ښوونکي څرګندونې په غور اوري.<br>–پر آب او هوا او د اورښت په اغیزو خبرې او بحث کوي.<br>–د لوست غوره او مهمو برخو په هکله یادښتونه کوي.<br>–د نقشې له مخې د اقلیم اغیزمن لاملونه په غور اوري<br>–په ډلو کې فعاله ونډه اخلي او پایله یې د ډلې د استازې په واسطه د ښوونکي په لارښوونه د ټولګي مخکې وړاندې کوي.<br>–پوښتنو ته ځوابونه وایي<br>–د لوست د ارزونو پوښتنو ته ځوابونه وایي<br>–د لوست لنډیز ته ځیرېږي او ځانونه پوهوي<br>–له ټولګي بهر فعالیت لیکي او په کور کې یې سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**۸–د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

**۱**–د لنده بل لرونکي هوا کتله چې د غرنیو سیمو په ټیټو برخو کې وي، په ورو ورو په لوړوالي کې خپله تودوخه له لاسه ورکوي، د اورښت سبب کیږي، له دې امله په ټولو برخو کې یو ډول اورښت نه کیږي.

**۲**ـــ د لمر د لګېدو له مخې د سمندرونو جهیلونو، خلیجونو او بحیرو اوبه بړاس کیږي او د اوبو د بړاسونو په پایله کې فضا ته پورته کیږي، د اوبو د بړاسونو د لوړېدو په عملیه کې یې تودوخې کمیږي، سړیږي، د اورښتونو او وربځو د رامنځ ته کېدو سبب کیږي.

**۳**ـــ اورښت د انسانانو، حیواناتو، نباتاتو او ټولو ژویو په ژوند کې ډېر ارزښت لري، ځکه چې ژوندیې بې د اوبو له شتون څخه شونی نه دی.

**۹–د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په ټولو ځایونو کې د اورښت اندازه یو ډول نه ده او د اورښت اندازه د سیمو په موقعیت پورې اړه لري، په ځینو وختونو کې د غرونو د لړیو شتون د لنده بل لرونکو بادونو د تېرېدو خنډ کېږي او د هغو په ټيټو برخو کې اورښت کېږي، د استوا د سیمې د کلني اورښت اندازه د ۲۰۰۰ او ۳۰۰۰ ملي مترو ترمنځ ده او په معتدله ځایونو کې له ۱۰۰۰ ملي مترو څخه زیاته ده او ځینې وختونه دغه اندازه له ۵۰۰ څخه تر ۱۰۰۰ ملي مترو پورې رسیږي، د همالیا غرنیو سیمو کې د باران اندازه ډېره ده چې د هند له سمندر څخه د مونسوني بادونو په واسطه د اوبو براسونه هلته وړل کیږي په پایله کې دواورې او باران په ډول راکوزیږي.

د لوړ او ټيټ فشار چاپیریال د اورښت په اندازه مستقیمه اغیزه لري، هغه اقلیمي سیمې چې ټیټ فشار لري، د اورښت اندازه يې ډېره وي، له همدې امله په معتدله او استوايي سیمه کې زیات اورښت کیږي.

په قطبي چاپیریال او د قطب لاندې چې د لوړ فشار چاپیریال ښکاره کوي، اورښت لږ لیدل کیږي، د استوا په چاپیریال کې د کالني اورښت اندازه دومره توپیرنه لري او ټولې ورځې يې سره برابرې دي، خو د معتدله او تر قطبي لاندې سیمو اندازه د کال په موسمونو او فصلونو کې بدلون کوي.